

زه دا پیش کوئي کولے شم، چې په راتلونکو وختونو کښې به ساحل د پښتو یو ډېر ځانګړے او مثالي شاعر وي، داسې شاعر چې هر وخت او هر ځاې نه پیدا کیږي.

سعدالله جان برق

۱/۱/۲۰۱۳ منګل

بسم الله الرحمن الرحيم



## پېژندنه:


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | زما درد زما غزل |
| مصنف: | افتخار ساحل |
| د پلار نوم: | سيد احمد |
| د زيږېدو نېټه: | ۲/۲/۱۹۸۸ |
| موبائل نمبر: | 0301 8858780 |
| کلې: | خدريزی پښو سيمه تحصيل و ضلع نوښار |
| د چاپ کال: | ۲۰۱۶ء |
| کمپوزنګ: | فهيم عاطف |
| د کتابونو شمېر: | 500 |
| بيعه: | 150 |
| پبلشر: | يونيورسټی بُک ايجنسی |
| د موندلو درک: | يونيورسټي بک ايجنسي خيبر بازار- پېښور، برق پښتو ادبي ټولنه- خدريزی پښو سيمه، صفت ميډيکوز چراټ روډ پبي سټيشن. |

# ټړون

د ژوند د هغه محرومو او
تلخیانو په نوم چه زهٔ يې د
«څهٔ بل څهٔ» په ځاي صاحب
کتاب کړم.

# تیز رفتار

ما چې په ورومبي ځل د ساحل کلام وکتلو، نو په زړه کښې مې هم دا خیال و، چې دا هم هغه شان یو شاعر دے لکه څنګه چې په پښتو کښې بې شماره دي لکه د خرېړو پیدا کیږي او لکه د توتانو ترې نه کلام ورېږي.
هغه کلام چې د مخکښې نه په پښتو کښې په امبارونو پروت دے بې شماره کتابونه ترې ډک دي او دومره څوک نشته، چې یې پلو د مخه واخلي.
خو چې په غور مې ورته وکتل نو ځای په ځای پکښې داسې بڅري ځلیدل چې د نورو نه بدل وو بیا چې څومره څومره موده تېرېده، نو ما لیدل چې دا هلک ډېر په تیزۍ سره مخ په پورته روان دی.
د شاعرۍ موضوع اکثر هم حسن و عشق او ورسره تړلې معاملات وي او ډېرې اوږدې زمانې نه د شاعرۍ موضوع هم دغه معاملات وي نو د هرې ژبې او هر وخت په

شاعرۍ کښې دغه موضوع اکثر اړخونه راغلي دي او شاعرانو پرې خپل خپل خيالات احساسات او جذبات پيش کړي دي او داسې يو اړخ په نظر نه راځي چې په هغې څه ونيلے شوی نه وي. ښايست او د محبوب د هر خط او خال خبرې د حسن په ليدو د عشق کيفيات بيا ديدن هجران او وصال مختلف اړخونه، په بار بار بيان شوي دي، نو اوس داسې کم اړخونه پاتې دي، چې څوک پرې څه نوې خبره اوکړے شي، دغه وجه ده چې زمونږ د شاعرۍ يوه ډېره لويه برخه د يو شان والي ښکار ده او سوايې د تکرار نه پکښې څۀ نوې خبره ډېره کمه په نظر راځي.

خو په دې کښې هم شک نشته، چې د تخليقي ذهن خاوند بيا هم پکښې څه نا څۀ نوے اړخ نوې زاويه او نوے خيال را پيدا کړي کۀ نوے خيال نه وي نو زوړ خيال له داسې رنګ ورکړي، چې نوے ښکاري.

د ساحل موضوع هم دغه همه ګير او مُستِقل موضوع عشق و محبت دے، خو ددغه هنر دا دے چې کۀ زړه خبره کوي نو هم په نوي رنګ کښې يې کوي او دغه ددۀ کمال هم دے هنر هم دے او امتياز هم.

ما چې د کومې تيزۍ خبره وکړه، نو ساحل ډېر په لږه

موده کښې ډېر زيات سفر مخ په پورته کړے دے او دا سفر د وخت سره سره نور هم تيزېږي، ګړندے کيږي او پورته کښېږي. دده په هر غزل کښې دده سفر ننني ښکاري کوم چې دی مخ په وړاندې کوي مخ په پورته يې کوي.

زه په دې خبره کښې هيڅ باک نه محسوسوم چې ساحل په لږه موده کښې کوم سفر کړے دے کوم ذهني وسعت يې حاصل کړے دے او کومه ارتقا يې کړې ده دومره مونږ په ډېرو اوږدو مودو کښې هم نه دے کړے، بلکې دا هم هسې زمونږ يوه خوش فهمي ده چې سفر مو کړے دے عين ممکنه ده چې مونږ هډو په ځاې ولاړ يو، خو ساحل په ځاې ولاړ نه دی.

د هر شعر او د تخليق د معيار په باب کښې عالمانو وئيلي دي چې کله يو شاعر يو فنکار او يو هنرمند ته خپل زوړ تخليق ښه ښکاره شو نو دا ددهٔ د زوال يا جمود نښه ده کله چې شاعر خپل زوړ کلام ګوري، نو په هغې کښې ورته د کمي په ځاې خوبي ښکاره شوه، نو ددې مطلب دا شو چې ددهٔ ذهن ددهٔ فکر او ددهٔ معيار ودرېدو او کله چې دهٔ ته په خپل زوړ کلام کښې هر وخت څه کمی څهٔ خاموالی څه غلطی ښکاره کيږي، نو دے مخ په

وړانـدې روان دے. دده ذهنـي سـفر د ارتقـا پـه لـوري جاري دی.

او ساحل کښې دا شے لا شـتـه دے، دے هـره ورځ د نـور وړاندې د نور ښه او نـور ښه په تکل کښې دے او دا خبره د خلکې د ويلـو نـه ده، بلکې ددهٔ پـه شاعرۍ کښې لـه ورايـه ليدلے کيږي زه چې کله هم ددهٔ نـوے کلام اورم، نـو راتـه پته لګي، چې ساحل پـه قـول د مولانا حالي د خـوب نـه د خـوب تـر پـه تـالاش کښې دے، د نـورې ترقۍ نـورې ارتقا پـه لټـون کښـې دی. او دا ددهٔ هغـه امتيـازي وصـف دے، چې دے د نورو عامو شاعرانو نه مختلف کوي.

نـه شـم وئيلے، چـې پـه راتلونکـو وختونـو کښـې ژونـد د ساحل سره څـه سلوک کوي، ځکـه چـې ژونـد ډېـر ناترسـه دی او د ژونـد واقعـات ډېـر بـې رحمـه وي، پـه بنده کښـې ډېـر انقلابـات ډېـر بدلونونـه راولـي، خـو کـهٔ حـالات دغسـې وي او خـدایٔ دے د بـدو سـترګو او بـدو وختونـو نـه وساتي، دے هـم دغسـې روان دے نـو زه دا پـيش ګـوئي کـولے شم، چې پـه راتلونکـو وختونـو کښـې بـه ساحل د پښـتـو يـو ډېـر ځـانګړے او مثـالي شـاعر وي، داسـې شـاعر چې هر وخت او هر ځاې نه پيدا کيږي.

سعدالله جان برق

# ساحل او د پښتو جدیده شاعري

هم دې پښتو د بایزیده تاریکے جوړ کړے
تر اوسه سپین نه شو لګیا دے نور لا هم توروي

(پرېشان خټک

الله جل جلاله فرمایلي دي: (ولقد کرمنا بني آدم) بې شک مونږ بني آدمو ته عزت ورکړے دے. (په نورو مخلوقاتو باندې).

الله جل جلاله په خپل قدرت یو انسان پیدا کړو او د هغه ځینې یې د هغه جوړه پیدا کړه او له دې جوړې ځینې یې د انسان د پیدایښت شروع اوکړه. مونږ دې اولني انسان ته آدم (علیه السلام) وایو او ددغې جوړې نه پیدا

شوي انسانانو ته بني آدمان. که ددې انسان یعنې بني آدم ته تول وزن او برابرے بهر شي نو د ژوند تول نظام به ګډ وډ شي.

تال آهنګ او ترنم د کاینات یو فطري عنصر او د انسان یو لرغونے وصف دے او هم ددې عنصر او وصف ته بیا انسانانو د شعور د تکمیل په وخت یعنې هغه وخت چې د الفاظو په تال او آهنګ کښې پوهه او شعور تنوتل شعر وئیلے دي شعر او موسیقي په یو کالبوت کښې دوه روحه دي او ددې دواړو روحونو د حلول ځاي انساني روح دی، نو ځکه خو انسان په شعر او موسیقي دواړو مئین دے.

خوشحال بابا په خپل قیمتي کتاب (دستارنامه) کښې شعر د شلو هنرونو څخه یو هنر بللے دے او د شعر متعلق یې ډیرې ژورې او ګټورې خبرې لیکلي دي، چې هغه دا دي: ((شعر د شعور مشتق دے چې جبلي طبیعت لري، شو د هغه دې د شعر هم جبلي طبیعت بویه هم یې علم د صنائع بدائع بویه سوا تر دا نمک شیریني د شعر تعلق په درد محبت لري او پختګي یې په استعمال. ابتداء د شعر د افلاطون حکیم نه شوې ده، د شعر پایه لویه ده، حکمت سره یاده ده، پیغمبرانو وئیلے دے، د پیغمبر اصحابو وئیلے دے، د امیرالمؤمنین حضرت علي کرم الله

وجهه تمام دېوان په عربي ژبه شته، د شعر پوهه دشواره ده، ويل يې ګران دي، د هر چا کار نه دے، هغه دي وايي چې سُخندان دي، يو يو بيت يې د فرزند زو هسې شولې لري، خداى ؒ دې په دا رنځ څوک ګرفتار نه کا، د شعر طبيعت د تند باد دے لوې ونې طاقت لري چې ورته ودرېږي او که نه بنياد محکم نه لري هغه ونې د بېخه واړوي، قوت د علم بويه چې بېخ يې پرې محکم وي او که نه بې آفته مغرته به پاتې شي، چې بې علمه شعر وايي څو نقصانونه لري، اول خو به يې درست ونه وايي، د شعر د عيب جاسوسان ډېر دي ځان به د خندا کا بل دا چې که فقط د شعر صنايع بدايع د عروض علم زده کا قوت د نور علم نه وي خطا به ورځنې واقع شي، ايمان به باني کا، بل دا چې د شعر مستي ډېره ده چې تاب د مستی د علم په زور رانه وړي، مخبط به شي، که ددې دواړو کارونو تېر کمال يې حاصل هغه سړے که شعر وايي هغه علم، حکمت، فضيلت دی. هغه و ته که رضعت نه دی هم رفقت دی»».

شعر هغه دی چې ووايي دانا
هغه څه شعر نه دی چې يې جوړ کاندي ګانا
دواړه توکه څه دي درته وايم په معنا

## یــو آواز د خــرۀ دے، بــل آواز دے د سُــرنا

(خوشحال بابا)

د خوشحال بابا د خبرو نه څرګندېږي، چې شاعري هم یو فن یا هنر دے، چې د بې علمه او بې هنره سړي کار نه دے او زه هم په دې عقیده یم چې شاعري باقاعده علم او هنر دے، آمد یا الهام نه دے چې په چا را ورېږي. محنت او کړاو غواړي.

کله چې عبدالله جان مضموم لکه دسمندرخان سمندر د ادب د کمال معراج ته ورسېده او د فنون لطیفه په ګڼ اړخیز اضافو معمور شو، نو یو شاعر یې دې ته وهڅولو، چې هغه ډېر په فخر او ډاډ ووایي چې:

شــاعري، نثــر، فنکــاري، صــداکاري او مــزاج
بلها فنونه راغونډ شوي دي په ځان د مضموم

او یا یې وویل:

دهقانــه د چــا یــاد دې فکــر داسې کــړو راګیــر
آسمان لکه په سترګو کښې راتــول چې څنګه وي

څــومره لــوی آســمان پــه دومــره وړو سترګو کښې راټولـول هم یــوه حیرانــونکې خبــره ده او پــه دومــره وړوکـي ذهــن

فکر او مغزو بلها فنونه راځاې کول هم سمندر په کوزه کښې بندول دي، داسې ځانګړي خلک ډېر کم پیدا کیږي چې هغوی دداغسې ګڼو صلاحیتونو مالکان وي، ځکه چې دا خدا داد صلاحیت، د انسان دننه پیدایشي ماده، پوهه، تجربه، مشاهده او د علمي کتابونو مطالعه غواړي او په دغه د ګوتو په شمار خلکو کښې یو افسانه نګار، خاکه نګار، مضمون نګار، صداکار، د دردېدلي ترنم څښتن او دغني خان او اشرف مفتون او د فلسفي افکارو ځینې نور شاعران ادیبان چې د پښتو د ادب د نویو رنګینو لارو لاروي دي، د هغوی ملګرے جدید او فلسفي شاعر زلمے افتخار ساحل هم شامل دے.

ساحل د پښتو د جدید غزل او نظم لیکونکے دے، چې په خپل فلسفیانه ذهن او تجرباتي شعور په دې لنډ تنګ عمر کښې ښه کامیاب او ګړندے د خپل منزل مقصود په لور روان دے. سره ددې چې د مشرقي اقدارو په اړانه کلک ولاړ دی او د هر قسمه بې باکۍ او بې حیایۍ نه يې ځان په ډېره ساتلے دے او هم په دغه وجه د پښتو په جدیدو شاعرانو کښې شمار دے.

ساحل د یوې سپېځلې جذبې او د پښتون اولس د معاشي، ذهني او سماجي ترقۍ ارماني شاعر دے، ځکه

خو وايي:

زه خو چراغ يم چې بلېږم نو رڼا کوومه
هسې عبث د محفلونو قيد کښې نه راځمه

او کله يې چې د خپلې معاشرې په غلطو رسمونو او رواجونو د اصلاح په غرض طنز کړی دی، نو بښه په ډاګه يې ويلي دي:

زما د زړه د ګلستان يو نازولې مېرمن
د غيرتي لالا د لاسه په سوره کښې لاړه

د ساحل شاعري سياسي، انقلابي، مزاحمتي او اصلاحي ضرور ده، خو ولې انسان فطرتاً حسن پرست دے، په حسن مئين دے او د خپل فطرت نه مجبور دے، نو ځکه خو وايي:

يو پرق شو د تيرو په مخ رڼا وه او که تندر
په ما چې يې راپرېوته برېښنا وه او که تندر

او يا دا چې:

چا ترې نه پوښتنه د ساحل په هکله وکړله
ويې خندل او ويې وئيل ښه ښه، هغه پاګل سړے

په هر انسان باندې د هغه د قومیت، ماحول، تربیت، فضاء او آب و هوا اثر ضرور وي، ساحل هم ددغه څو عنصرونو د اثر د لاندې ګېر دے په قوم خلیل مومند دے او پیدا شوے د خټکو په خاوره د ضلع نوښار په خدریزي کلي کښې دے، یعنې د قومیت په اعتبار د رحمان بابا نسبي دے او د ماحول، فضاء او آب و هوا اثر یې د خوشحال بڼابا د خاورې.... نو که په دغه سبب ورته خوشحال شناس او رحمان شناس ووایو، نو بده به نه وي.

زمونږ د کلي د یو مشر سړي د خُلې وینا ده، چې مونږ ته به خپلو مشرانو وئیل چې د خوشحال بابا د کور ماشومان به لا خبرې نه وې زده کړې چې شعر به یې زده وو او زه چې کله کله د ساحل او ددهٔ د نورو خوږو ملګرو لکه فاروق څیګر، محمدشاهد طاهري، اسد ګیلاني، اعجاز منزل، واجد نور، رضاخان رضا، صبغت الله شیرین او دغسې د نورو ملګرو د عمرونو په اندازه د دوی ادبي ژوند ته وګورم، چې د ریلوے په هغه سرکاري ډاګ به زما سره ناست وو (او لا تر اوسه ما سره ناست وي) او د مازیګر نه تر تېر ماسخوتنه به مو ګرمې ګرمې مشاعرې او ادبي بحثونه کول، نو هم هغه د خوشحال بابا د کور د ماشومانو قیصه رایاده کړي.

دهقان خدریزی

۳/۱/۲۰۱۶

# "زه او ساحل"

زما او د ساحل تعلق ډېر د وړوکتوب نه دے، بلکل د هغه وخت نه چې زمونږ په مخونو تار ويښته هم نه وو، خو د وخت تودو سړو هغه زما نه مشر کړو. ډېر مشر دا د هغه مينه، خلوص او مېنتوب دے چې لا تر اوسه ما پسې وروستو وروستو ګوري، هغۀ رواجي تعليم نه دے کړے او نه يې لکه د رواجي عالمانو او سکالرانو په شان اوږدې اوږدې چمکدارې ډګرياني اوسندونه ترلاسه کړي دي، خو د ژوند په هره لحظه او ګړۍ کښې ما هغه يو سکالر او عالم ليدلے کتلے دی.

زير نظر کتاب «زما درد زما غزل» د ډېرې مودې راسې د ارادې په چوکاټ پروت و، خو د وخت څپېړو ساحل داسې په منډه کړے وو، چې هډو د خپلې ارادې تکميل ته يې پرېښودو نه او زه... زه هم د تېرو پنځو کالو راسې

په سرابونو پسې منډې وهم او چې بنهٔ ستړے او ستومانه شم، نو خالي لاس واپس په خپل ځاې کينم. يوه خلاء غوندې په ژوند کښې محسوسوم، ورځ مې هم په دار وي او شپه هم په لړزان. هغه د حمزه بابا د صحرا د بربوکو کيسه ده. کتاب يې وروستو شو خو بيا هم چاپ شو، دا چاپ کيدل يې يواځې زما او د ساحل دپاره نه د پښتو ادب د مئينانو دپاره هم د ډيرې خوشحالۍ خبره ده.

زمونږ د دواړو فکري روڅنه يو ځاې، يو ماحول او يو شان شوې ده. مطالعه مو هم تر ډيره حده مشترکه ده، خو د مطالعې په هڅولو کښې ما ساحل اکثر د ځان نه دوه قدمه وړاندې ليدلے دے، دا بيله خبره ده چې هغه هر ليک (هغه که نظم دی او که نثر) وړومبے ماته د اصلاح دپاره وړاندې کړے دے، زه کهٔ يو طرف ته په دې خبره ځان خوش نصيبه ګڼم چې زهٔ د خپل وخت د يوې لوړې پايې شاعرۍ مجموعه کښې تاسو ته مخاطب کيږم، نو په دې خبره فخر هم کوم چې ساحل زما د "لنګوټي يار" دے.

د ژوند په روان ګاډي کښې د هغه مثال د هغه مسافر دے

چې منزل ته خو ځي، خو په جېب کښې کرایي نه لري او
زما مثال د هغه قیدي دے چې هره شپه ورځ په ویښه د
آزادۍ خوبونه ویني، خو په اصل کښې آزادي د کلونو
په سفر پرته وي.
زمونږ د دواړو په ژوندونو کښې دومره مشترک والے دے،
چې تر دې جملې لیکلو پورې زه داسې محسوسوم لکه
چې لګیا یم په خپل ځان لیک کووم، ځکه خو د ساحل
شاعري په ځاې پاتې شوه او زه په بله سر شوم، خو بهر
حال د هغه شاعري زما د منطقونو او وضاحتونو محتاجه
نه ده او نه زه دا ضرورت محسوسوم، بلکې زما خو دا
عقیده ده چې کتاب خپل وکالت په خپله کوي، که د
ساحل په کلام کښې دم وي، نو د چاپ نه وروستو د هغهٔ
او د هغهٔ د مئینانو په منځ کښې هیڅ قسمه حالات نه شي
حایل کېدے، (علاوه د مرګ نه چې زمونږ پرې ایمان
دے) خو زهٔ ضروري دا ګڼم (تر اوسه پورې زه واحد یو
داسې سړے یم چې د هغه د ژوند د نشیب و فراز نه، نه
یوائې خبر یم، بلکې هغه مې په هر رنګه حالاتو کښې
ډېر د نزدے ځاې نه لیدلے کتلے دے) چې دغه ټول
عکسونه د هغه ښاغلو لوستونکو ته وړاندې کړم.
په ساحل کښې مستقل مزاجي کمه ده، اضطراب یې د

طبیعت خاصه ده او اکثر په خپرو خپرو کښې جذباتي
کیږي، خو د ادب او سلیقې لمن یې کلکه نیولې وي، د
خپل تخلص غوندې رومانیت پکښې په سلواوو پلو
پروت دے، خو د حالاتو ستم ظریفي یې سر وهلو ته نه
پرېږدي. د هغه مثال د هغه کامیابین دے چې ېښل
خندوي او خپله ژاړي.

هغه د ژوند د هر پړاؤ او موسم نه رنګونه راغونډ کړي
دي او «زما هر د زما غزل» په صورت کښې ستاسو په
وړاندې پراته دي، دا اوس په تاسو ده چې د هغه دغه
کوشش ته په کوم نظر ګورئ، خو دا خبره زه په وثوق
سره کوم چې پس د لوستو به تاسو دا محسوسوئ، چې
موږ په پښتو ادب کښې یو نوے رنګ او اسلوب ولوستو،
کومه ذمه واري چې هغه ماته د مخه لیکلو دپاره را په
غاړه کړې وه، شاید چې زه هغه پوره نه کړے شم او یا
یې په هغه «طریقه» ادا نه کړې شم کومه «طریقه» چې
زموږ په ماحول کښې رائج ده، خو زما ذاتي خیال دے
چې «طریقه» ضروري نه ده، ضروري ده د لیکوال
پېژندګلو، په کومه کښې چې زه بهر حال کامیاب یم.

شخصیت او حالات، د انسان په سوچ، فکر او رویې اثر
انداز کیږي او هم دغه عناصر د تخلیق ګار د تخلیق

سبب او وجه ګرځي، محمد شاهد طاهري (چاته چې زه سر سید احمد خان او ساحل مولانا عبدالکلام آزاد وايي) وايي: "چې ساحل کمال کوي" خو زه وایم "چې ساحل کمال نه کوي" بلکې دا وخت دے چې په "ساحل کمال کوي".

دنیا د ارټ لوښکے دے کله ډک او کله تش، خو د هغه په هکله دغه لوښکے ما اکثر تش لیدلے دے.

خدائے ج دې وکړي، چې د ډک لوښکی واریې هم راشي، چې په روغ زړه ادب ته ملغلرې سپارې. زما امید دے چې حالات به د ساحل د ګریوان نه لاس اوباسي، وخت به د خپلو بې رحمه خپېړو خپېړې ودروي، د ژوند په ګاډي کښې به د هغه په جیب کښې د مزل د پاره کرایي هم راشي، خو کله............

خدائے ج خبر!!

په پښتنه مینه

فاروق ځیګر

محله بر مسجد خدریزئ

۲۰۱۶/ جنوري – ۲

# زما په خیال

ځنګه چې ژوند لا محدود دے، نو هم دغسې ادب هم لا محدود شے دے. يو نظريه يا يو عقيده په هره زمانه يا هر دور کښې د انسان د اهمو ضروورياتو نه يو مهم ضروورت ګڼلے شوے او منلے شوے دے، خو زما خيال دے چې نظريه او عقيده بغير د يوې سپېځلې او کوټلې جذبې نه په هر حال نامکمله ده، ځکه چې د نظريو او عقيدو دپاره د دليلونو او منطقونو ضروورت وي، خو جذبه....

جذبه د داسې قسمه ورو ورو خبرو نه ډېره مبرا وي، خو په شرط ددې که دغه جذبه د يو خاص ټولګي يا خاص چاپېرچل په ځاې د ګلهم انسانيت دپاره وي.

"زما درد زما غزل" کښې خلائي تبصرې او ما فوق
الفطرت تخيلات نشته، د زمکې د ژورتيا، حدونو او
پيمايشونو پيمانې نه دي ازمائيلے شوي، دې کښې هغه
شے نشته کوم چې د عام انسان د روزمره خيالاتو او
مشاهداتو نه اوچت دے، خو دې خبرې ته په شعوري
توګه پام شوے دے، چې کم از کم هغه داخلي او
خارجي احساسات، مشاهدات او تجربات کوم چې په
شعوري او لا شعوري توګه د انسان د روزمره ژوند حصه
دي هغه په خپل اصلي حالت کښې تاسو ته وړاندې
کړے شي او شايد چې هم دغه زما فن هم دے نظريه
هم او عقيده هم.

بله خبره دا، چې "زما درد زما غزل" يواځې زما د
احساس نه، بلکې ددې موجوده حالاتو ژبه ده. اوس دا
ژبه ترخه ده که خوږه او که رنګينه، دا ستاسو تر
محسوساتو منحصره ده، زه هيڅ قسمه دعوی نۀ لرم.

ما له نورې هم ډېرې خبرې راځي، خو ضرورت يې ځکه
نه ګڼم چې تاسو په اولنو صفحو کښې د پوهانو رايې
لوستي دي، البته د هغه ملګرو شکر ګذار يم چا، چې
ددې کتاب په چاپ کولو کښې ما سره هر قسمه مرسته

کړې ده.

د محترم مشر سعدالله جان برق صیب، دهقان ځدریزي او زما د خوږ اشنا فاروق ځیګر د پاره د منني الفاظ نه لرم، چا چې په خپلو ژورو او ګټورو لیکونو "زما درد زما غزل" ونمانځلو.

تاسو یقین وکړئ که د صبغت الله شیرین شیرینه او لېونې مینه په ما نه وے زوروره شوے، نو شاید... شاید چې "زما درد زما غزل" هم هغسې پانې پانې په درازونو کښې پروت وے.

افتخار ساحل

۷/۱/۱۶

د جمعې شپه



د ژوند په لاره چې تر څو د نظر تار وو زما
ستا تصور هم لکه ستا غوندې ويزار وو زما

اوس چې زما تشه نامه اخيستل کفر ګڼي
هغه سړے څه زمانه کښې پرستار وو زما

ما به يې څنګه هريو حکم په سر سترګو منهٔ!
نه زه بنده وم، نه هغه پروردګار وو زما

هرې نعرې مې انا الحق سره سيالي کوله
هر يو احساس زخمي زخمي په سر د دار وو زما

په لږ کړاؤ دغه لحظه د وصل ګرانه نهٔ وه
که تر قيامته پورې تا ته انتظار وو زما

ما په هر څه کې د اصولو پاسداري کوله
هر څه مې بائلل محبت وو که روزګار وو زما

تاته به ياد وي يا به... نه درياد وم يې نه خو
ستا په لويي کښې هم وړوکے شان کردار زما

ما به پرې هر وختې باران د شرابونو کوو
که د ښکلا په رياست باندې اختيار وو زما

توبه توبه څومره سرکش وو د ځوانۍ وختونه
چرته چې نۀ کار، نوهم هلته کې به کار وو زما

نۀ زۀ يوسف ع ابن يعقوب ع وم نه دا ښار د مصر
ولې بيا هر څوک په هر رنګه خريدار وو زما

د زړګي راز به مې ساحله چاته نه ښودلو
سر خو هغه وو چې د عقل نه وزګار وو زما



په هر ډګر مې وو نظر تيرې تيرې غونډې
شپه را خوره وه ستا د تورې لوپټې غونډې

حالات په مونږه راتپي د بدنامۍ تورونه
اورمه نن سبا نرۍ نرۍ قيصې غونډې

نن مې نظر د رواجونو زنځيرونه شلول
نن يې په غېږه کښې په زوره رانيوې غونډې

زما د تورو تورو سترګو د خمار طبيبه!
زړه کښې مې ښخې ښخې کيږي څه چړې غونډې

د ژوند غارمۀ يې د احساس د سر ويښته سوځول
ساحل روان وو په دَو دَو خولې خولې غونډې



د حالاتو په دوتر کښې خندنی چې مې جذبه ده
دا د کوم جنت احساس دے؟ کوم تکل کومه آسره ده

د عمرونو پېره دار بانهٔ مې ځمب ته نهٔ جوړېږي
د خوبونو کونډه ناوې مې په سترګو کښې اودهٔ ده

هر پیغام دې زما غوږ ته لکه ګرمه سیکه توې شي
وخته دا دې ترنم دے؟ وخته دا دې زمزمه ده

د معاش فکر لرونکو راشئ راشئ ساه یې خېژي
د غربت د دیو په لاس کښې د ژوندون مرئ خپه ده

که په شمع باندې سوځم، که چراغ ته لوګے کېږم
خو قایل د تیارو نه یم، په رڼا مې عقیده ده

هغه څوک وه؟ د کوم ځائ وه؟ دا خبره دومره ښه ده
دا قیصه ډېره زړه ده، دا قیصه ډېره اوږده ده

چې په خوي باندې منصور دے، چې په قام باندې خلیل دے
اوس که دار دے او که نار دے د ساحل ژبه یوه ده



راګیر چې وو په ډېرو ګردشونو کښې ژوندون
مونږ کړے دے په دغسې وختونو کښې ژوندون

د خپل حُسن د لوې غرور پر نوم لږه مسکئ شه
را پوک وهه په ګرځنده لاشونو کښې ژوندون

د پیغلو په ټیکرو به ترې ګلونه زرغونیږي
تر څو چې راټوکیږي په سرونو کښې ژوندون

د چا د پاره خوب د شوګیرې په تېغ حلال کړو
چې نشته د پې مخو په لوظونو کښې ژوندون

نزدې ده چې فکرونه دې د باد په سر بهه شي
ساحله را پیدا کړه په لفظونو کښې ژوندون



هغه که هر څه وو، رواج یې د الفت پاللو
زما د زړه د هر آرمان سره یې پت پاللو

زه د اجل د سوري لاندې داسې ژوند کومه
لکه یونس ؏ د مهي خېټه کښې قدرت پاللو

هغه یو درد چې تا د خپل حسن زکات ګڼلو
ما د شباب د شوګیرو په ریاضت پاللو

ته څه خبر یې، بې خبره ستا د هر یو ستم
هر یو پرهر مې ستا د غم په حرارت پاللو

چې د حالاتو تیزندۍ مو په څټونو کښې وې
ساحله دې کښې به مو څنګه محبت پاللو



هغه د خلکو منځ کښې اوسي خو جدا سړے دے
ستا لېونے خو د خوبونو د دنيا سړے دے

په کوم دليل يې ذمه وار د خپل شکست وګڼم
رقيب خو هم لکه زما غوندې باچا سړے دے

راځه چې دواړه ورله ورشو لاس نيوه يې وکړو
هغه ځنګل کښې يو نيمګړے نيمه خوا سړے دے

چا مې د کور نغرے وران کړو چا د کلي ګودر؟
په چا دعوه وکړم، چې دغه او که دا سړے دے

د چا د غمه چې خندا په ځان حرامه ګڼم
هغه سړے څومره بې غمه بې پروا سړے دے

چې څۀ خبرې يې په زړۀ وي په ميدان يې کوي
ستاسو ساحل د آينې غوندې صفا سړے دے



هغه د خلکو منځ کښې اوسي خو جدا سړے دے
ستا لټونے خو د خوبونو د دنيا سړے دے

په کوم دليل يې ذمه وار د خپل شکست وګڼم
رقيب خو هم لکه زما غوندې باچا سړے دے

راځه چې دواړه ورله ورشو لاس نيوه يې وکړو
هغه ځنګل کښې يو نيمګړے نيمه خوا سړے دے

چا مې د کور نغرے وران کړو چا د کلي ګودر؟
په چا دعوه وکړم، چې دغه او که دا سړے دے

د چا د غمه چې خندا په ځان حرامه ګڼم
هغه سړے څومره بې غمه بې پروا سړے دے

چې څۀ خبرې يې په زړۀ وي په ميدان يې کوي
ستاسو ساحل د آينې غوندې صفا سړے دے



څومره سلګۍ وې، څومره څړيکې، څومره ډېر دردونه
ستا محبت کښې مې د زړه نه وو چاپېر دردونه

تاله د خپلو ستمونو احساس نه درکوي؟
زما د سترګو په ګوټونو کښې برسېر دردونه!

زه چې بې شمېره ارادې لرم سنګار دې کووم
ژوندونه! څکه دې راکړي دي بې شمېره دردونه

چې ستا نه پس يې اثاثه د زندګۍ ګڼمه
څنګه دې غم د ځانه بېل کړم، څنګه هېر دردونه

جانانه ستا د اوښکو رود به هم بندونه مات کړي
که د ساحل دخاموشۍ نه شو را تېر دردونه



ستا د ښائست، د نزاکت څاڅکي را وورېدهٔ
د زړهٔ په دشت مې د رحمت څاڅکي را وورېده

په دې اُمېد دې همېشه د کور طواف کوومه
که چرته ستا د محبت څاڅکي را وورېده

بیا به په نیمه شپه د خان د حجرې ور ټکووم
بیا د آسمانه په شدت څاڅکي را وورېده

چې ستا په سر مې دشته مندو سره سر وهلو
زما تندي نه د غربت څاڅکي را وورېده

ساحله بیا د چا د یاد چپو په مخه کړلې
چې دې د سترګو قت په قت څاڅکي را وورېده



زما رڼا د تور پړوني په پرده کښې لاړه
سپوږمۍ د تورو تورو ورېځو په جرګه کښې لاړه

د هغې څۀ وو، خو دوو ټکو کښې یې راکړو جواب
زما د ټول عمر خواري یوه لحظه کښې لاړه

ازغي ازغي بانۀ دې اوس هم ګذارونه کوي
ګلاب ګلاب ځواني مې ستا په تلوسه کښې لاړه

زما د زړۀ د ګلستان یو نازولې مېرمن
د غیرتي لالا د لاسه په سوَرۀ کښې لاړه

د ژلمېتوب د زندګۍ یو قیمتي حصه مې
ستا د نازونو اداګانو بدله کښې لاړه

د ژوندېپه منډه کښې خو ځکه وروستو پاتې شومه
چې د غربت دِ ازغي سوکه مې په خپه کښې لاړه

ما د ساحل نه تماشه د سمندر کوله
خو زندګي مې هم په دغه تماشه کښې لاړه



زيات که نه وي کم خومې په لاس کښې دے
شکر دے چې دم خومې په لاس کښې دے

گله ستا د غېږې يو تېرهٔ ازغے
ياد ستا د ستم خومې په لاس کښې دے

تا وئيل چې لاس کښې زرغونېږي نا!
وګوره، شړشم خومې په لاس کښې دے

څه نا څه بړاس پرې د زړه وباسم
ښه ده چې قلم خومې په لاس کښې دے

ستا په جفا نه، خو په دې خپل ارمان
وير، ژړا ماتم خومې په لاس کښې دے

چرته څې، را وګرځه دا وګوره
ډک زړګے د غم خومې په لاس کښې دے



زما نظر کښې خو بس دا دے د هغهٔ حیثیت
لکه چې څنګه په وجود کښې وي د زړهٔ حیثیت

نه مې ستا زنه کښې حاصله کړه د خال مرتبه
نه مې ستا سترګو کښې نصیب شو د رانجهٔ حیثیت

چرته چې ټول خلک په زړونو باندې لوبې کوي
هلته د زړه د ماتولو آخر څهٔ حیثیت؟

ما که څه غوښتي دي، خو غوښتي مې د بل دپاره
نه مې نامه له چا نه، غوښتې ده او نهٔ حیثیت

دومره وو دنګ د هغه ښکلې د ښکلا تصور
چې د هر ښکلي يې په خپو کښې ټيټېدهٔ حیثیت

شراب د بل او تشنګي وه د ساحل په لبو
ساقي! محفل کښې دې ور وبخښلو، ښهٔ حیثیت؟



دومره حصارونو نه چې ستا تر بام و در رسي
خداې زده، چې آواز به مې تاته برابر رسي؟

دلته خو په هر څه باندې زور د زورور رسي
کند د قلندر رسي، او تخت د سکندر رسي

رسي دې مقام ته خو زمونږ غوندې کم تر رسي
ستا د تندي خال ته به بېشکه بختور رسي

نه ګڼم چې بيا به ترې شغلې د رنګ او نور اوځی
دی د زړګي تل ته چې مې ستا د نظر نمر رسي

ته او خداې چې ووايه په دې کښې خو خطا نه يم
ستا د قدم خاورو ته زما بې سره سر رسي؟

ويش چې د تقدير وشي، نو ټوله نړۍ امن شي
يو زه بدقسمته يمه ماته پکښې شر رسي

زلفې په شا ټولې کړې او مخ ته يې راپرېوځي
شپه که په شا لاړه شي خو زور يې تر سحر رسي



تــوره تیـاره کـه سـتا د زلفـو د زنـدان حصـه ده
زمـا قبولـه ده، چـې دا د امتحـان حصـه ده

صبر شـه! تـا لـه بـه ګجـرې د ښاره راوړمـه خـو
لا مـې د برخـې پـه غنمـو کښـې د خان حصـه ده

کـه ستا د مینـې نـه منکـر شم نـو کـافر بـه شـمه
وطنـه! تـا سـره خـو مینـه د ایمـان حصـه ده

سـتا د جمـال د زړه راښـکونکو نظـارو پـه لټـون
دا رنـړې اوښـکې مـې د سـترګو د تـاوان حصـه ده

د وخـت نـاړامو تـه سـاحل زړه سـمندر ولـره
ځکـه چـې دا د غـم څپیـړې د دوران حصـه ده



څه تپوس کوې همدمه، چې په چا باندې راتول دي
زمونږ ځېرې ګرېوانونه، خو په تا باندې راتول دي

هر نظر دے چې انښلي، ستا په نرمو خوږو شونډو
د مېږو هوس ته ګوره، په حلوا باندې راتول دي

په نامه خو د حرص دي، په نامه خو د لالچ دي
په معنی کښې جوج ماجوج دي، په دنیا باندې راتول دي

ستا د یاد د ترهګرو، د یرغل په نتیجه کښې
حادثات مې د زړګي په پښتونخوا باندې راتول دي

بس که، راشه، ګنې خوري مې، د حالاتو بد روحونه
ته یې نه وینې صنمه، خو په ما باندې راتول دي

ما دروغ ګڼله، خو رښتیا ده، چې ساحل یې
طوفانونه دي په هرې تمنا باندې راتول دي



ستا د تصور نه که پردے شمه
بیا خو به د لارې لاروے شمه

ستا د مُسکو شونډو د حاصل په لار
زه په انګارونو باندې تلے شمه

دا د کاڼي کلک تن به رانجهٔ کړمه
ګوره که په سترګو کښې دې ځاے شمه

دریغه چې په سم نظر را وګوري
دریغه چې زه هم چرته سړے شمه!

ستوري که اوچت دي، خو ممکنه ده!
ستا په تصور یې رانیوے شمه



چې انحراف د شوګیرې نهٔ کوو
بې حرمتي دې د وعدې نهٔ کوو

د یو اشنا په یو نظر مو ایمان!
هر نازولي ته سجدې نهٔ کوو

یو څو خبرې ملغلرې کوو
هسې اوږدې اوږدې قیصې نهٔ کوو

اوس یې انجام له عنوان لټوو
اوس یې په حُسن تبصرې نهٔ کوو

خم دے، ساقي دے او پوره اختیار
خداې نه پرېږو چې نشې نهٔ کوو

مونږه د دار یو، دار زمونږ ساحله
لکه د خلکو تماشې نه کوو



د ژوند د ډېرو هلو ځلو شر فساد دے پکښې
زړه به مې مات و، خو چې بچ دے، د چا یاد دے پکښې

نن مې د مخ تاثراتي تحریر ته ښه وګوره
ستا د نیازبینې ګلورینې ځوانۍ داد دے پکښې

اے د نازک وجود نازک احساسه خواست کوومه
نور مې وحشي وجود ته مه راځه جلاد دے پکښې

که ستا د شونډو اسویلي ووځي، نکهت خوروي
زما په شونډو که نغمه ده، خو فریاد دے پکښې

د هغه سترګو مرادونه دې خداې نه رد کوي
چې د ساحل غوندې ناښاد او نامراد دے پکښې



نن مې نظر ستا په لټون کښې په يو سا ځارلې
هغه کوځې، چې انتظار کښې به مې تا ځارلې

ما به وې ګوره که يو پړق ستا د جمال شي پکښې
د هجر شپې به مې په طمع تر سبا ځارلې

ما به په لړه تروږمۍ اور اورکي رانيول
ما په بچپن کښې هم استازې د رڼا ځارلې

څوک لېوني وو په خندا په سر د دار وختل
چا په قدم قدم کښې سترګې د ملا ځارلې

ځکه يې ستا د مئينانو صف نه اوويستمه
چې وسوسې مې د زړه چاودې تمنا ځارلې

چې ويښ اوده وو ژوندی مړه وو، د وفا سنګرې
بغير زمونږ نه به ساحله وروره چا ځارلې



دا خو دنیا ده، چا نیمګړې چا پوره وخوړه
ما په ترخه ترخه، یارانو په خوږه وخوړه

چې ستا د یاد پیتے یې راوړلو زما تر سره
هوا د کینسر د مریض غوندې دمه وخوړه

کلونه پس چرته کښې ناڅاپي درغاړه وتم
بخښنه غواړمه، په هېره مې روژه وخوړه

دغه شپونکے چرته داصله سوداګر خو نه دے
څنګه زمرے وو، چې په یوغړپ یې رمه وخوړه

هغې سحر لکه د نمر ستوماني وویستله
په مونږ یې هسې انتظار کښې غوټه شپه وخوړه

اوس ورته غوږ شه چې بې وخته آذانونه کوي
د زړه طالب مې ستا دکلي وظیفه وخوړه

ساحله ستا لاهو کېدل هم یقیني ګڼمه
دچا خورو ورو زلفانو که چپه وخوړه



په زخمي زخمي اعصابو مې پرتې دي
ستا دفکر شوندې هغسې تودې دي

ستا د مينې په پيرزو کښې څه کمے دے
که زمونږه بې مقصده شوګيرې دي

څنګ د کبر نه شمله په تندي کېږدم
تار په تار د ملاليو لوپټې دي

بوراګانو درنګ ساعت له په دې لاره
را روانې د ګلونو قافلې دي

ما به وې چې ګورې دا به دې لاهو کړي
تا به وې د جلاله اوبۀ خوړې دي

د حالاتو د موسم د نظر تاره
په کتو کښې دې مُبهمې اشارې دي

شپه درنه ده، لږ بيدار اوسه ساحله
هر طرف ته طوفانونه دي، چپې دي



یو پړق شو د تېرو په مخ، رڼا وه او که تندر
په ما چې یې راپرېوته برېښنا وه او که تندر

اوتره شوه هوسۍ غوندې په دانګو لاړه
شوخي وه که مستي وه، کهٔ حیا وه او که تندر

د سترګو نه راپرېوته د زمکې تل ته لاړه
دا اوښکه مې د صبر انتها وه او که تندر

چې کړس شو نو د کړس سره مې زړه په ښکته لاړو
خبر نه شوم د ځانه، چې خندا وه او که تندر

بېګاه سپوږمۍ پوره وه، خو بیا هم پیکه پیکه وه
حیران یم چې نیولې ستا ښکلا وه او که تندر

د ډېرو غمازانو نه یې وار و پار خطا کړو
محفل کښې یې زما په باب وینا وه او که تندر

ساحله چې د ځان سره یې پاڼې پاڼې یوړې
طوفان وو، زلزله وه، که هوا وه او که تبدر



غزل غزل، نغمه نغمه، سپرلي سپرلي مخونه
د جهنم په اور کښې سوځي جنتي مخونه

زما پرهر پرهر احساس يې نور زغملے نه شي
د هر دېوال نه کوزوم دا خونړي مخونه

چا د دهشت او مايوسۍ کندې ته وغورځول
هغه د ګل غوندې ښېرازه او مُسکي مخونه

هيڅ زما د مستقبل پرواه ونهٔ ساتله
هم مې د حال اوليدل، هم مې د ماضي مخونه

د چا هر داغ چې مې تمغه په خپل تندي ګڼله
هغه ياران زما نه ولې پټوي مخونه

ورځه ورځه! ته د رنګينو تماشو عادت يې
له ژونده سترې د ساحل په مخ اړدي مخونه



د مایوسۍ تیرې په هر طرف خورې ولې دي
د ګل په شونډو د سپرلي نغمې اودې ولې دي

چې نه زه نمر یم، او نه ته د څوارلسمې سپوږمۍ
بیا موتر منځه د وختونو فاصلې ولې دي

هغه که سراسر د زهرِ هلاهل چینه ده
نو دا خبرې یې د شاتو نه خوږې ولې دي

چې په یو لور وې نو لا نور پکښې څه حرج د تپوس
بس! ماته مه وایه چې سترګې دې کږې ولې دي

نن دې خندا زمونږ نه ولې دوزخ نه هېروي
نن دې ساقي په مېکده کښې ډیوې مړې ولې دي

اے د انسان په خوږ خوږمنو د انصاف مړونو
زمونږ څهونو له حالات چړې چړې ولې دي

د یو منزل په لارو کښې تفاوت د څهٔ دے؟
په یوه لاره بیلې بیلې قافلې ولې دي؟

یا یې تار تار کړه یا پرې زړه د درخو وتخنوه
آدمه، قات دې په رباب کښې ترانې ولې دي

چرته فردوس، چرته سقر، ځکه حیران یمه چې
ستا د نظر په بهارونو کښې لمبې ولې دي

ډېرې راوکتل خونن یې ورته ونه کتل
خدایا دا سترګې مې په خوي کښې پښتنې ولې دي

نقش دې په شونډو پُر اسراره سیاهي دځه ده
دا په شفق باندې نرۍ نرۍ تیارې ولې دي

دا یوتپوس درنه کوم صاحبه ستا د محل
هره ډیوه کښې د مزدور وینې خولې ولېدي



د مرگ په پانه د ژوندون قیصه رنګینه غواړي
ملګرو هره کربلا د حسین رض وینه غواړي

ته به جواب لرې که نه؟ د تاج محل ملکې!
زما خولې چې دې قصاص د لونګینه غواړي

څرته چې حق وئیل ګناه وي حق پرست لیونی
هلته به څنګه څوک د چا نه خپله مینه غواړي

د احساساتو سنګ زني ده، ملامت نه یمه
چې تخیل مې د تخلیق ژبه سنګینه غواړي

نه یې خپل سر په تیشه ووهۀ، نۀ غر ساحله!
زما فرهاد خو په خوبونو کښې شیرینه غواړي



ژبې هغه دي د وفا لوظونه هغسې دي
زمونږ په برخه دروغژن خوبونه هغسې دي

تازه تازه مې د زړګي زخمونه هغسې دي
په دې مزار د چا د لاس ګلونه هغسې دي

نه زمکه سره تانبه شوه نۀ آسمان را اونړيدۀ
زما په شونډو مسلسل آهونه هغسې دي

زما وجود نه زما سا چرته پخوا وتې ده
ستا د قاتل نظر خويونه هغسې دي

مونږ د فرهاد ورونو پرې د ډيرې تنې وشلولې
خو د شيرينې د بابا شرطونه هغسې دي

د جهان ذکر پکښې ستا د ذکر ځاې ونيوو
اوس نه ساحل نه د ساحل شعرونه هغسې دي



چې هر ناز لکه ازغے د ګل اندام دے
عشقه! دا دې څومره ښکلے انتقام دے

د پرکار غوندې په یو نقطه تاوېږم
هر قدم مې یو آغاز لره انجام دے

که څوک څښي، که نه، خو ځانګې حیراني ده!
د ساقي د سترګو دومره احترام دے؟

کله زړونه ماتوې، کله لوظونه
دا دې څه پښتونولي ده څه اسلام دے

د ساحل په بې رخۍ مه خپه کېږه
نن سبا لره په ګردش کښې د ایام دے



یاد چې دې په هېره په خطا نه شوم
ورک دې کړمه داسې چې پیدا نه شوم

تا مې کوم ارمان په وینو رنګ نه کړو
زه دې کوم ستم ته په خندا نه شوم

هسې دې د شونډو تاؤ ته اونیوم
څه خوږه وعده شومه، وفا نه شوم

خوب ومه په سترګو کښې دې حل شومه
درد ومه د زړه نه دې جدا نه شوم

ستا د تصور په جهانونو کښې
ډېر که د هر چا ومه د چا نه شوم

اوس مې یقین راغې سودایي شومه
ګنې چې ستا د زلفو په سودا نه شوم

اُف، د هغه سترګو طوفاني نظر
ښه ده چې ساحله په هوا نه شوم



درد يمه، څريکه يمه، پرهار پرهار يمه زه
د خپل غزل د ټکو د غاړې هار يمه زه

چې نه مې خپل شته پکښې، نه څوک خواخوږے جانان
څه له ثابته کړمه، چې ددې ښار يمه زه

ښوته چې ښه وايمه، بدوته بد وايمه
ځانله کارونه ګورم، هسې وزګار يمه زه

مطربه ستا د رباب، په هر يو تار کښې زه يم
ساز يمه سوز يمه زه، سُر او سينګار يمه زه

ستا د ښايست نه بغير، دنيا کښې هيڅ نه وينم
څومره بې لارې يمه، څومره په لار يمه زه

ساقي د نورو مئيو، طمع به څه له کووم
ستا د الفت په مئيو، خمار خمار يمه زه

زما او ستا د مينې، د قيصې سر دغه دے
چې نه مې يار کړلې ته، او نه دې يار يمه زه



ژوند چې د ژوندون د کوره وتے دے
سر مې د ځنګون د کوره وتے دے

ستا لېونے، ستا کلي کښې، ستا نخښې
ګوري، په لټون د کوره وتے دے

څوک به يې په ډېر څه باندې نه کړي کور
څوک چې په سمون د کوره وتے دے

ستا د ميلمنو پينزيبو شرنګ سره
خوب، آرام، سکون د کوره وتے دے

ورشه د ساحل په خوا يې وګوره
هغه چې پرون د کوره وتے دے



چې مو ضمیر د محبت رڼا ته ګوته نیسي
خداې خبر خلک ولې ما او تا ته ګوته نیسي

زما شعور لکه قیدي د آزادۍ په امېد
په خداې یقین وکه، چې هر سبا ته ګوته نیسي

چې هر سړے پکښې د ځان له احتسابه زغلي
په داسې حال کښې به څوک څنګه چا ته ګوته نیسي

نه ورختے شم، نه یې لاس کښې رانیولے شمه
بې خوده زړه مې د سپوږمۍ ځلا ته ګوته نیسي

زه هم انسان یمه، مجبور له خپله نفسه یمه
چې خواهشات مې د هوس رضا ته ګوته نیسي

چرته ساحل اوچرته ستا اور ورووُنکے شباب!
هسې ساده، دے چې د اور وفا ته ګوته نیسي



مشکل ده که عمرونو کښې یو بل سره یو ځاې شو
راځه! چې په خوبونو کښې یو بل سره یو ځاې شو

د ژوند جبر ځپلي دوه خود سره مئین زړونه
د وصل آسمانونو کښې یو بل سره یو ځاې شو

غمونه د دنیا که د یوبل نه کور وکړ دي
خو ماته په دردونو کښې یو بل سره یو ځاې شو

یقین وکړه که بیا مو څوک په عمر کښې جدا کړي
یو ځل که په سوچونو کښې یو بل سره یو ځاې شو

تیرې وې، تندرونه، طوفانونه، وو ساحله
په دغسې وختونو کښې یوبل سره یو ځاې شو



د کلي لار ده، رقیبان کوي څوکۍ غرمه ده
د زلفو سوري کښې مې پټ کړه لیونۍ غرمه ده

ته د هغه نه د خپل سر د سوري طمع لرې
د چا په سر چې ټول عمري د بې وسۍ غرمه ده

نن ورته ټول زخمونه سپړم د ټکور په غرض
نن یې په شونډو د شفق د رنګینۍ غرمه ده

پښتانه ستړي دي، اوده دي، تېږې مه زوتوه
بس، د بلۍ نه شه راکوزه ملالۍ[1] غرمه ده!

ساحله ځکه مې د زړه انګړ ته اور اچوي
ستا په غزل باندې حاوي د زندګۍ غرمه ده

---

۱- د میوند ملالۍ ته اشاره ده!! (ساحل).



په هر قدم مې ازمېښتونه د دنیا تنګوي
داسې حالات دي، چې حساس سړي له سا تنګوي

ما چې ې لاس نیوو، نو زۀ یې ترهګر بللم!
ما چې له جنګه توبه وکړه،اوس مې لا تنګوي

دا به هم وخت وي چې زه ستا د تصور نه وځم؟
دا وسوسه مې د جنون تر انتهاء تنګوي

زمانه پس لکه د تېرې سانحې په شکل
زما یقین دے چې یادونه به مې تا تنګوي

ما درته وې، تا نۀ منل، څه! اوس زما نه بغیر
ساحله څنګه دې د خپل زړګي درزا تنګوي



چې د حسن او وفا خبرې کېږي
لازماً به پکښې ستا خبرې کېږي

محبت دې مشهور لکه مجنون کړم
په هر کور کښې اوس زما خبرې کېږي

بیا به نه راځم ناصحه دا دے لاړم
ستا محفل کښې خو بس دا خبرې کېږي

باور وکړه چې بغیر د محبت نه
که د خُلې نه مې والله خبرې کېږي

ستا په هکله مشورې ستورو نه اخلم
ورسره مې تر سبا خبرې کېږي

په تلو تلو کښې شو خوږې خبرې وکړه
په نصیب به چرته بیا خبرې کېږي

چې هر وخت د سمندر مخکښې دېوال وي
د ساحل د زړهٔ ورتیا خبرې کېږي



ما بـه وژلـے وو، کـه ګـران تـه مـې لاس نـه رسـېدو
آرمان خـو دا وو، چې آرمان تـه مې لاس نـه رسېدو

د خپـل نصـيب سـتورے بـه مـا راشـوکولـے وو خـو
ډېـر رانـه لـرې وو آسـمان تـه مـې لاس نـه رسـېدو

پرون يې څه راته په ډک محفل کښې ځان اووئيـل
دومره اوچت شومه چې ځان ته مې لاس نه رسېدو

پـه غـټـو غـټـو مـې کـتـل خـو زه بـې وسـه ومـه
خپې مې بې دمه وې، کاروان تـه مې لاس نـه رسېدو

اوخانده اوخانده خو خپل مې تار په تار کړو ځکه
اے زوروره! ستا ګرېـوان تـه مـې لاس نـه رسـېدو

څه دومره لـرې تـرې نـه، نـه وم خـو بيـا هـم سـاحله
زه ډوبېدمـه اوجانـان تـه مـې لاس نـه رسـېدو



تبه مې نه وه خو خولې رابانديې تلې او راتلې
د خپل حساس فکر لمبې رابانديې تلې او راتلې

اخر انسان ووم ما به څنګه ترې نه ساه اخیسته
ستا د تېره نظر چړې رابانديې تلې او راتلې

زه لکه زمکه ووم مجبور ووم په خپل وس کې نه وم
د ظلمتونو قافلې رابانديې تلې او راتلې

نن يې له ورايه راته ووې چې دا څه وجه وه؟
ساحله ستا غوندې چپې رابانديې تلې او راتلې



چې د خوبونو په جهان بهروسه پاتې نه شوه
لکه د ژوند مې په جانان بهروسه پاتې نه شوه

چې يو پوره کړم بل راوتو کېږي څهٔ وکړمه
زما د خپل زړهٔ په ارمان بهروسه پاتې نه شوه

ټوپک په لاس سنګر ته درومي قرآن نه خپلوي
د مسلمان په خپل ايمان بهروسه پاتې نه شوه

ستا په کوځه د پېره دارو شمېره زياته شوله
که نه! زما جوړې په ځان بهروسه پاتې نه شوه

د يو انسان د بل انسان نه سترګې نه شرمېږي
د يو انسان په بل انسان بهروسه پاتې نه شوه

ساحله ته دې هم دا خپل لستوني ښه وشنډه
پکښې پراته نه وي ماران، بهروسه پاتې نه شوه



چې په دنیا کښې څوک جانان نه لري
لکه چې زړه نه لري، ځان نه لري

عکس ته دې ډېرې اوښکې تویې کړمه خو
خلیل زړګے مې پرې ایمان نه لري

هغه د سرو ګلو د بڼ باسي وو
زمکه پرې اور شوه خو آسمان نه لري

د محرومو په آرمانجن کلي کښې
څوک دے چې زړه باندې آرمان نه لري

ستا د سر تېره دیدنونو ملنګ
قلنګ مني خو بس! تاوان نه لري

ستا د سیلاب سیلاب نظره توبه
زما د زړه ساحل یې توان نه لري



څوک چې د چا د هرې سا په نامه سا اوتړي
دا زمانه ورپورې نوم د لېونتیا اوتړي

د محبت تودې جذبې مې سړولے نه شي
که ډېر بندونه مې په لاره کښې دنیا اوتړي

هله به ووځي ستوماني مې د ستومانه وجود
څوک که یوځل په خپلو زلفو باندې ما لوتړي

نادان زړګیه محبت کښې ژور سوچ پکار دی
خلک چې بار ته لاندې وځي اول ملا اوتړي

ساحله بیا به دې لیدو له څوک درځي او که نه؟
وخت که په خپلو زنځیرونو خپې زما اوتړي



لېونی ده د دولت محتاجه نه ده
زما مینه د صفت محتاجه نه ده

ستا د زلفو خوشبویانې پکښې ګرځي
محله دې د جنت محتاجه نه ده

شاعري چې مې د یار د شونډو رنګ شي
ګڼې نوره د شهرت محتاجه نه ده

چې زما د زړه په دشته کښې اوسېږي
د مغل د سلطنت محتاجه نه ده

د ځوانۍ هره چپه کښې مې مستي ده
د ساحل د حرارت محتاجه نه ده



څـه زورور دے! پـه ولاړو چـړو لـوبې کـوي
ستا انتظار مې همېشه پـه بنـو لـوبې کـوي

يـوائې زه خـو يـې پـه مينـه لـوغړن نـه يمـه
ډېر پتنګان يې د ښايست پـه لمبـو لـوبې کـوي

کله مـو لاس کښې لوبـوي کله مـو خپـو تـه اولي
حالات پـه مـونږه د ميرګـاټي چينـدرو لـوبې کـوي

لوی انسانان ورته د ځان نـه ډېر واړه ښکاره شي
واړه مارغـان چـې پـه اوچتـو بنګلـو لـوبې کـوي

زړګيـه دا څـه کـوې، چـل دوکـه فريـب ايـزده کـا
دا زمانـه خـو پـه رېښـتونې جـذبو لـوبې کـوي

څوک يې ټوپک ته وايي، څوک يې تشدد ته وايـي
بعضې لوبغاړي پـه اسـلام او پښـتو لـوبې کـوي

څنګـه يـې پوهـه کـړم د سـترګو پـه رموز سـاحله
هغـه خـو اوس هـم لا پـه مـاتو بنګړو لـوبې کـوي



د تهمت تورکي کجل په مخ شیندمه
پرېږده! نن خو دې اوربل په مخ شیندمه

ستا بهار بهار ځوانۍ له دوام غواړم
خواهشات چې د اجل په مخ شیندمه

که قابله وي، نو لاس وربانـدې سرۀ کړه
د زړه وینه، دې اول په مخ شیندمه

راشه، ستا د بیا راتلو په انتظار کښې
ستا د پل خاورې خجل په مخ شیندمه

چې بوسه یې ستا د شونډو ضرورت وي
داسې رنګ به د غزل په مخ شیندمه

رب نه غواړه چې یوسل ژوندونه راکړي
چې هر ژوند دې په هر ځل په مخ شیندمه



ورک د چا په فکر هره شپه هغه پاګل سړے
ستورو ته کوي يوه قيصه هغه پاګل سړے

هلته کښې چې نه د چا غوږونه وو نه سترګې وې
خود به وو د ځان سره اخته هغه پاګل سړے

اوس هم په رڼا ورځې خوبونه د ديدن ويني
اوس هم په ګودر کوي ټپه هغه پاګل سړے

ستا د دروغژنو وعدو لوړو غرونو ته
ستا په انتظار تيروي شپه هغه پاګل سړے

چا ترې نه پوښتنه د ساحل په هکله وکړله
ويې خندل او ويې وئيل ښه ښه! هغه پاګل سړے



خلـــک نــــاروا او روا پېژنــــي
څـــومره چې تــا پېژنـــي، مــا پېژنـي

وختــه دا زه نــه يـم چې دريـاد يمـه
خپلــه سرکشــي مــې پــه تــا پېژنــي

ســـترګو تـــه دې ځکـــه دعــاګو يمـه
ســـترګې دې رازونـــه پـــه مـــا پېژنـــي

ياد دې پـه کوڅـه کښې را تـر غـاړه شو
شکر دے چې څـوک خـومې لا پېژني

يـاره د ســاحل حســن شـناس نظـر
ســتا هــره شــعله ادا پېژنـــي



په ګل د ګلچينانو غزونې دي چې کېږي
جانانه په لفظونو کښې مې غنې دي چې کېږي

دا وينې چې توييږي په چمن کښې دا زما دي
ګلاب يې د محل ددې ميرمنې دي چې کېږي

د ژبې د عروج او د زوال پيمانه نشته
خالي د کتابونو مخ کتنې دي چې کېږي

يادونه دې بې درېغه بې تپوسه پکښې ګرځي
د زړه په پيښور کښې مې چاودنې دي چې کېږي

چې يو مړه کړو، نو بله پکښې ځل بچې پيدا کړي
زمونږه د دوران په سر کښې کنې دي چې کېږي

ساحله بې حسابه آرزوګانې د زړګي مې
يو بل ته په يو کور کښې بنې بنې دي چې کېږي



چم په چم او کور په کور راسره ګرځي
ستا غمونه په هر لور راسره ګرځي

ستا د خيال او تصور نه چرته پټ شم
د آسمان په شانې خور راسره ګرځي

دا چې يو قدم په بام ږدم بل په زمکه
د بې خودې ځوانۍ زور راسره ګرځي

دا زما د محنتونو کمال نه دی
دعاګانې مې د مور راسره ګرځي

دا چې هر چاته ښکاره يمه په جار يم
د سپيځلي مينې تور راسره ګرځي

زه ساحل چې په مستۍ يم سمندره!
ستا د مستو چپو شور راسره ګرځي



دا مقام چې مې په ټولو، ليونو باندې اوچت دے
ستا د حسن کرشمه ده، ستا د مينې برکت دے

نور پرې خدايګو نه پوهېږم خو سړي نه سړے جوړ کړي
بد يې مه وايه ناصحه، محبت خو محبت دے

دا چې مخ ته حجاب نيسي، سترګې پورته کړي ويشتو ته
څومره ښکلې حادثه ده، څومره ښکلے شرارت دے

نه څوک ښه شته په دنيا کښې، نه څوک بد شته په دنيا کښې
د حالاتو تقاضا ده، د وختونو ضرورت دے



لکه چې چا رانه پټ کړے يې ته
د زمانې په هر انسان مې شک دی

کله چې درون او کله سپک مې تلې
د يار د سترګو په ميزان مې شک دی



هله به يې منم چې مې زړګے د خوده وځي
دا چا ويل چې مينه کښې سړے د خوده وځي

يو شپه به دې جبين لره سپوږمۍ راکوزومه
يو ورځ به مې دوس دغه کمے د خوده وځي

ناشونې ارتقاء دخداې د قهر علامت دے
مالک د بال و پر شي چې ميږے د خوده وځي

په عقل او جنون کښې به بس دغه کتل غواړي
چې دے د خوده وځي او که دے د خوده وځي

بې واکه مې د سترګو سمندر نه شي ساحله
دې اوښکو ته مې وګوره لړ اے! د خوده وځي



چې د وفا د امېدونو، جنازې اووتې
زما د هر آرمان د سترګو نه لمبې اووتې

دا په ګلشن باندې فضاء د ویرانۍ خوره ده؟
که مې نظر نه د رنګونو قافلې اووتې؟

بس کړه راځه! په دولتونو پسې منډې مه وه(۲)
په دغه منډه کښې د ډېرو نه جامې اووتې

وایه چې بیا به د تیارو مخنیوے څنګه کوو؟
د تصور نه که مو ستا سترګې ډیوې اووتې

یو یو بڼه یې ځانښونکو کړه بیرغ(۳) د امن
ښه شوه د امن د کونترې نه بڼې اووتې

اوس په خود شوے یم د غرونو سرته نه خېژمه
اوس مې د خیاله ستا د زلفو سلسلې اووتې

---

۲- وهه.
۳- جنډا.

ته څه خبر یې؟ چې په هر ګودر په هر کلي کښې
زما او ستا د مینې څومره خلاصې اووتی

یو ویني ګرمه بستره کښې جنتي خوبونه
بل دوزخي نه په باران کښې هم خولې اووتی

د مېکدې په مړ وجود کښې به روح څوک اچوي
ساحله ستا چې هم د شونډو نه توبې اووتی

## قطعه

د ټولو رنګینو نه چې ناکام شولو راستون
زما زړه ستړی فکر ستا ښکلا ته خو به تلو

خبره چې د حق او د باطل تر منځه راغله
نمسے د پیغمبر وو کربلا ته خو به تلو



چې په رګ رګ کښې مې خوره لمبه ده
دا زندګي ده او که سره لمبه ده

ستا دوه نازکې شونډې سرې سکروټې
زما غندل ځواني لمبه لمبه ده

غم د جانان دے او که غم د جهان
دوه يې نامې دي، خو يوه لمبه ده

پرون چې تا د بل په کور وروو
دا هغه اور دے هم هغه لمبه ده

د انتظار په غرغنډه کلي کښې
ستا د فراق هره لمحه لمبه ده

## غـزل نما نظم

تکړه دې شي علاج دې راتـه وښـايي شـاعر
ترڅوبه مې هر زخم تـه بانـه ښـايي شاعر

د زلفو صفتونو لـه دې نـور خلـک پيدا کـړي
پرهر پرهر زړګے دې مـونږ تـه نـهٔ ښـايي شاعر

زمونږ خو په سرونو کښې مازغه هم راخوټکيږي
خبر دے! چې دا څـه وايـي؟ او څـهٔ ښايي شاعر

دخپل فکر د سپين بياض په هره سپينه پاڼه
د تـام اوچتيـدهٔ او پرېواتـهٔ ښـايي شـاعر

اديب! چې د ادراک په سمندر کښې د لاهو کړي
د تورو اوبـو تـل کښې چـې ويښته ښـايي شاعر

وړه وړه خبـره تـر اسـمانه پـورې يوسـي
لـوې لـوې مُحرکـات واړهٔ واړهٔ ښـايي شـاعر

ساحله سـخنوره دا څـه واې، دا څـه واې
پاګـل دے چې پـه پيـو کښـې اوبـهٔ ښـايي شـاعر



د ژوند په جام کښې دې نشه دمړو کتو پرته ده
د ګل په رګ رګ کښې خوشبو ستا د خولو پرته ده

نه يې رقيب پيدا کړه، نه د ديدنونو ملنګ
يو ستوماني ده چې د کلي په کوڅو پرته ده

شايدچې دا هم د غزل يو لازمي برخه وي
کومه سرخي چې ستا په شوخو اننګو پرته ده

څه عاشقي ده، چې تورونه په لمن لګوي
څه زندګي ده چې په سُوکو د ازغو پرته ده

ستا د تېرو بڼو په لمس باندې پوهېږمه خو
خپله حياء مې د کلونو نه په خپو پرته ده

ځم، د دوران د جنګ اَلا پسې الا کوومه
د خپلې مینې جنازه مې په اوږو پرته ده

رباب ته ګوتې کړه آدم شه، ددې دور آدم
ټوله قیصه نامکمله د درځو پرته ده

د کلي خان دے، د خپل ګاډي نظر نه ماتوي
زما د سر وینه یې اوس هم په پایو پرته ده

د جنون دشته سرکول دي، د منزل ښاغلو
چرته په لنډو لارو، چرته په اوږدو پرته ده



د حق نشه چې پکښې نه وي دار ته چرته رسي
زمونږ سرونه د منصور کردار ته چرته رسي

په خوب اودهٔ خلک د عشق معیار ته چرته رسي
مین بغیر د شوګیرو نه یار ته چرته رسي

زما ریښې ریښې ګریوان او ژوبل ژوبل نظر
ستا د ښایست د پلوشو دیدار ته چرته رسي

زه ورله څنګه د جانان سره تشبیهه ورکړم
ګلاب ښایسته دے! خو زما نګار ته چرته رسي

د سرو شرابو په پیالو کښې شفقي رنګونه
ستا د قاتل قاتل نظر خمار ته چرته رسي

زه که هر څو چغې وهمه، نو وهم دې کنه
زما آواز د قصد نه کوڼ دلدار ته چرته رسي



خبـــره غلـــې بنـــه ده
ځُلــه مــې ګنــډلې بنــه ده

اے! تـــا ګټلـــې بنـــه ده
ځـــه! مـــا بـــايللې بنـــه ده

ستـــا لمـــن پاكـــه سـپينه
زمـــا داغلـــې بنـــه ده

په مرګ چې مړه شوه ابۍ
تبـــه شـــلېدلې بنـــه ده

مينـــه چـــې مينـــه نـــه وي
بيـــا شـــرمېدلې بنـــه ده

ستـــا انتظـــار مـــې وينـــه
پـــه لپـــو څښـــلې بنـــه ده
ستـــا د ديـــدن پـــه آرمـــان
ســـاه مـــې وتلـــې بنـــه ده
پرېږده چې بيا ډوبـه شي
ســـاحل لـــه تلـــې بنـــه ده



چرته نه چرته خو د چا ګرېوان ته لاس اچوي
سړے چې تنګ شي خامخا ګرېوان ته لاس اچوي

نن مې نظر ستا د جمال په لمن داسې نخلي!
لکه فقير چې د باچا ګرېوان ته لاس اچوي

خپله نېستي مې د غيرت په تندي داغ لګوي
ستا بې رخي مې د وفا ګرېوان لاس ته اچوي

ددې عادت نه په بيا بيا توبې اوباسمه خو
لېونی مينه مې بيا بيا ګرېوان ته لاس اچوي

خوارېه يادونه راله ستا په زړه کښې لارې کوي
تراخه وختونه راله لا ګرېوان ته لاس اچوي

کومو لاسونو له چې تا د زړه اختيار ورکوو
ساحله هغه خلک ستا ګرېوان ته لاس اچوي



شیشې شیشې دي، کاڼي کاڼي، ستنې ستنې لارې
زمونږ په برخه رسیدلي دي، ازغنې لارې

ته په دې لارو کښې ازغي، زۀ به ګلونه کرم
ستا نه به دغه، ما نه دا کوې غوښتنې لارې

چې ستا تنکي تنکي یادونه را ترغاړې وځي
اوښکې مې جوړې په ګریوان کړې تر لمنې لارې

زمونږ د کلي نرمې نرمې بې غروره کوڅې
ستاسو د ښار پخې پخې او کبرژنې لارې

ما له پیغور د بې وسۍ راکوي زور راکوي
ستا په رخسار ستا د کجلو تور بخنې لارې

وخته ساحل خو سمندر دے اودروے یې نه شې
ته که هر څو ورته قدم په قدم کنې لارې



که په کشش کښې له غمې ډېره ده
خو د وفا پکښې کمې ډېره ده

په مخ یې څاڅکي شبنمي پراته دي
که هواګانو کښې نمې ډېره ده

ناصحه! بس که بس که غلے شه لږ
دا مرثیه دې ماتمې ډېره ده

وړه وړه ده، لکه تانده غوټۍ
ورانه ده، جوړه، په سمې ډېره ده

زما ځواني ستا د ښایست د بلا
د یو خود ساخته اګرمې ډېره ده

ساحله زه په سمندر څه کووم
یوه قطره مې زمزمې ډېره ده



چې د ژوندون د ترانې نه مې رنګونه شلوي
زما آواز به يې هم دغسې غوږونه شلوي

چرته د زړه په يو ګوټ پير کښې چې دې هم اووينې
خودسره وينه مې بې واکه شي بندونه شلوي

هغه يو ځل چې مې عنوان وو د وفا ورکړے
هغه هم هغسې زما د نوم خطونه شلوي

دا خو زما د حسن کش نظر مننه کوه
چې دې د مخ د خد و خال نه حجابونه شلوي

د سپوږمۍ هره پلوشه يوه بلنه وي خو!
د خپتې غم راله د فکر تناوونه شلوي

مونږ که هم دغسې د ځان يو نو ممکنه ده چې
راتلونکي خلک به زمونږه تحريرونه شلوي

ساحله دا د جديد دور ځان پرست لېوني!
نه په سر خاورې بادوي، نه ګرېوانونه شلوي



ماته احساس د زولنو کېږي
چرته چې ذکر د بنګړو کېږي

دا د کوم دین ایمان خبره کوې
دین او ایمان خو په پیسو کېږي

زمونږ د خوارو په جونګړو ربه!
باران چې کېږي په شېبو کېږي

چې یې د مور نته کښې غلا کوله
نن فیصلې په هغه غلو کېږي

حسن د زړو د پنجرې بندي دے
ګل په سايه کښې د ازغو کېږي

که په تغمو مزاحمت نهٔ کووم
بې حرمتي مې د نغمو کېږي

ستا د ښکلا په تصور ساحله
دا ګذارونه به تر څو کېږي

## نوی کال

نور د غمونو او دردونو تاب لرلے نهٔ شو
د خدای د پاره چې راځې نو خوشحالي راوله

اے نوي کاله د ساحل خزان ځپلي زړه ته
د محبت سرور شوي پسرلي راوله



دهشت چې په چینه، چینار ګودر غلبه کېږي
تیرې مې د ښکلا په تصور غلبه کېږي

د امن په بابونو کښې تاریخ رقم کوومه
لګیا ده زما وینه په خنجر غلبه کېږي

د هجر په غرمه کښې تراړې شونډې ګرځم
منې! چې موسمونه په منظر غلبه کېږي

یو ورځ به زما مینه ستا په حسن برے مومي
یو ورځ به دغه سیورے په اینځر غلبه کېږي

شاباس دې وي پښتون دے بې له تا نه زما صبر
په نورو خواهشاتو باندې زر غلبه کېږي

خدشه ده، چې بې واکه طلاطم پکښې پیدا شي
ستا درد مې د احساس په سمندر غلبه کېږي

تر څو چې په خپل منځ کښې «زه» او «ته» کوو ساحله
سکهان به تر هغې په پېښور غلبه کېږي



که ورپسې يم، که راپسې دي
چې ستا د خُلې دي، ښيرې هم ښې دي

وخته لږ تم شه، ما چې غوښتلي
نن هغه زلفې، په ما خورې دي

لغړ به پټ شي، اوږے به موړ شي
تشې دعوې دي، تشې وعدې دي

ساقي مدهوشه، راشه که وينې
مېخانه رنګه، جامونه تويې دي

زه غم نچوړ کړم، ياران مې وايي
ساحله پرېږده، ستا خو مزې دي



جانان ته که د ستورو کهکشان ته اشاره ده
زما په هر غزل کښې يو جهان ته اشاره ده

دا نرم نرم باد د ازمېښتونو پېش خېمه دے
دا لړه لړه دوړه لوی طوفان ته اشاره ده

سخي دے، دريابي دے، په ژوندوني جنتي دے
تا نه يادوي خواره، دا يې خان ته اشاره ده

د وېړ اسمان په منځ د بوډۍ تال دانه وانه دے
دا هم زما ريښې ريښې ګرېوان ته اشاره ده

واعظه دا د قهر او غضب قيصې د څه دے
رموز رموز کښې بيا د چا ايمان ته اشاره ده

د مخ په سپين حرم کښې خپل خواهش ته په سجده دے
دې خال کښې د نن دور مسلمان ته اشاره ده

بې سره دے، پاګل دے په تيارو کښې غشي ولې
ساحله مونږ پوهېږو دا دې ځان ته اشاره ده



جانان ته که د ستورو کهکشان ته اشاره ده
زما په هر غزل کښې يو جهان ته اشاره ده

دا نرم نرم باد د ازمېښتونو پېش خيمه دے
دا لړه لړه دوړه لوی طوفان ته اشاره ده

سخي دے، دريابي دے، په ژوندوني جنتي دے
تا نه يادوي خواره، دا يې خان ته اشاره ده

د وېړ اسمان په منځ د بوډۍ تال دانه وانه دے
دا هم زما ريښې ريښې ګرېوان ته اشاره ده

واعظه دا د قهر او غضب قيصې د څه دے
رموز رموز کښې بيا د چا ايمان ته اشاره ده

د مخ په سپين حرم کښې خپل خواهش ته په سجده دے
دې خال کښې د نن دور مسلمان ته اشاره ده

بې سره دے، پاګل دے په تيارو کښې غشي ولي
ساحله مونږ پوهېږو دا دې ځان ته اشاره ده



ځکه خوستا په حسن، زړه بدګومانه کړمه
نه مې ګرېوان وشلوو، نه يې بې ځانه کړمه

په څو خوږو خبرو د څو نوښونو په زور
چا بې ضميره کړمه، چا بې ايمانه کړمه

خيال مې څانګونه وهي، خو الوتلے نه شي
پرېشانو زلفو دې نن، ډېر پرېشانه کړمه

پټو رازونو نه مې څرمنو وويستله
ميني بد مست لکه خر، حق بد زبانه کړمه

هسې نه بيا راپسې سر شوکوې ساحله
هسې نه بيا درسره هنسې ورانه کړمه



زما قیصه په هره خُله ده، خو تر کومه به وي
ډېره سنګینه مسئله ده، خو تر کومه به وي

زما قلم به یې یو ځل د لاسه وغورځوي
د چا په لاس کښې که وسله ده، خو تر کومه به وي

ځوک چې زما د مړاوو سترګو تپوس ما نه وکړي
ورته مې تبه حواله ده، خو تر کومه به وي

سِحر انګېزه شخصیت یې درکتلی نه شم
په ما ظالمه زلزله ده، خو تر کومه به وي

زه که څه نه وایم، نو هم به آخر ووایمه
زما که ډېره حوصله ده، خو تر کومه به وي

زما کشتۍ د سیند په منځ کښې د ساحل په امید
کۀ لا خو روانه په توله ده، خو تر کومه به وي



ستا په ستم لکه باران پرېوتې
اوښکې مې تويې شوې په ګرېوان پرېوتې

چې په دنيا کښې ميلمه دوست يادېده
د هغوی کډې په ميدان پرېوتې

د غير غماز د نفرتونو لمبې
زما د زړه په ګلستان پرېوتې

په زخمي زړه مې لړ مرهم خوږېده
مالګې پرې ډېرې د ارمان پرېوتې

چې دې پالنه کړم مدام په اوښکو
د جانان غمه څومره ګران پرېوتې

ژوند خو لا کم دے محبت د پاره
نفرته ولې په جهان پرېوتې

ستا څو خبرې په تمام عمر کښې
ساحل ته ډېرې په تاوان پرېوتې



لکه چې نن ده، دومره نه وه کمزبسته سیلۍ
د زلفو څنډه دې زوروره کړه بې دسته سیلۍ

پلویې مخ نه الوتو، هغې به بیا رانیوو!
چې په رخسار به یې را ټیټه شوه د کسته[4] سیلۍ

څو څو کرته یې دځان سره په مخه کړمه
خو آخر دا، چې حوصلو مې کړله پسته سیلۍ

واعظه لرې شه نن هېرې توبې مه یادوه
څه پسرلے دی، څه ځواني ده، او څه مسته سیلۍ

څنګه به ستا د سماعت پردو ته نه در رسي
د زړه آواز سره مې سمه کړه پیوسته سیلۍ

ستا تخیل او دا بې واکه اسویلي ساحله
تیزې جیبي دَ ... سمندر او زبردسته سیلۍ



ما چې ستا ښايست ته کرامت ووې
شيخ ورته سپېڅلې بغاوت ووې

چا به ورته څه اوچا به څه وئيل
ما دې تورو زلفو ته وحشت ووې

خلکو ته دې لاس په تندي ايښی وو
مونږ ته دې د شونډو په سر ست ووې

تا هم مدعا دزړه څرګنده کړه
ما هم د نيمګړي محبت ووې

نن مې د جنون لمنه ونيوه
نن مې حقيقت ته، حقيقت ووې

هر څه چې دې وويل ساحله خو
ډېر دې د ابهام په نزاکت ووې



ژوند چې زړه سترې مرحلې شوې ستا په طمع طمع
ماتې مې تولې حوصلې شوې ستا په طمع طمع

چې غلبه پرې شوګیرې شوې ستا په طمع طمع
د اُمید سترګې مې ړندې شوې ستا په طمع طمع

د زړه ګلشن کښې مې تازه دحسرتونو غوټۍ!
مړاوې شوې،خاورې شوې، ایرې شوې، ستا په طمع طمع

د زړه معصومې ارزوګانې مې راویښې نه شي
څه په سلګو سلګو اودې شوې ستا په طمع طمع

سپرلیه تاته مې پرتې وې ګلدرې د فکر
ورانې ویجاړې ادیرې شوې ستا په طمع طمع

ستا انتظار کښې چې به ماته بلیدلي مدام
نن هغه ټولې ډیوې مړې شوې ستا په طمع طمع

اے د فراق د سمندر ساحله راشه کنه!
سترګې مې بیا چپې چپې شوې ستا په طمع طمع



ساقي ستا میکدې ته اوسېدو د پاره زه
راځم، د ترخو سترګو خوړېدو د پاره زه

نصیب وومه راوستے کړېدو د پاره زه
شوم تا سره یو ځاې د بیلېدو د پاره زه

چراغ وم، خو تا نه کړمه خوندي د زړه په تاخ
وم ستا نظر کښې بس د سوځېدو د پاره زه

وخت څومره په انصاف وکړو د برخو برخو وېش
خندا د پاره ته او ژړېدو د پاره زه
د حسن په فردوس دې رقیبان شو دعوه ګیر
د خیال په جنتونو غولېدو د پاره زه

یو غر د استقلال یمه، یو نمر د حرارت
حاسده! نه یم نه یم ورکېدو د پاره زه

شاید چې د ازل نه مقرر ومه راغلے
ساحله ستا په طمع ډوبېدو د پاره زه



يوه ځړيکه مې دننه په ګوګل شي
چې ستا درد راسره کله مل شي

چې د فکر په جهان مې خاموشي شي
ستا يادونه مې په زړه کښې په غوبل شي

که هر څومره تدبيرونه ژوند له ګورم
د احساس کمترۍ په ژرنده دل شي

هغه درد چې د زړه کور کښې مې ډيره دے
چې تر شونډو مې راوخيژي غزل شي

يو نيمګړے تبسم ورسره مل کړه
د ساحل نيمګړے ژوند به مکمل شي



هم په دې دعوه دلیل خو مکمل یم
ستا د نوم په مینانو کښې اول یم

ځۀ که ساه په خپو کښې نه لرمه شل یم
په سینه باندې روان په خپل مزل یم

دې تیروکښې په رنړا پسې په ځغل یم
زه غني یم، زه حمزه یم، زه اجمل یم

که ژوندون مې پیچ وخم دے پرواه نشته
شکر دا چې ستا د تورو زلفو ول یم

که هیڅ نه یمه، خو بیا هم څه نا څه یم
د چا ستر ګو کې ازغے د چا کجل یم

د ژوندون مقصد مې هو بهو هغه دے
خو په خوي کښې د منصور نه لږ بدل يم

بس خو ستا په ذکر فکر کښې ور بوخت يم
که په ښار باندې مېشته که په ځنګل يم

که زما مينه صحرا ده، سر يې ته يې
که ستا مينه معمه ده، زه يې حل يم

نه مې شور چرته کښې جوړ کړو نه اور پورې
تش په نوم د افتخار ساحل غزل يم

## قطعه

ته وينې نه؟ چې د يار غم له ښځه ستړګه کووم
ژونده نارې راپسې مه وهه اوزګار نه يمه

اے دلنشينه، دلارامه، ياره ستا نه بغير
تا څنګه ومنل چې زه به بې قرار نه يمه



وینځه، وینځه ده په سر یې شال بدل شو
مبارک شه، مبارک شه، کال بدل شو

د زړه وینه چې مې وچه شوه په زړه کښې
د خونخوارو حوادثو خیال بدل شو

ستا د قهر یو نظر ورله کافي وو
په بڼو کښې مې راوړے سوال بدل شو

مونږ به هم متغیر شو؟ او که هسې
د شپو ورځو د ګردش احوال بدل شو

هر وګړي که مادي خویونه خپل کړه
د حالاتو تقاضه ده، چال بدل شو

ژوند رڼا وه، که عطاء وه که ښکلا وه!
د سزا په حق کښې هر مثال بدل شو

مفتي ته ګناه نشته دے ساحله
راګ هم هغه دے خو سُر او تال بدل شو



د خپل خپګان اظهار یې داسې په هنر کولو
زما په وړاندې یې رانجهٔ په اننګي واچول

د یو نظر په زور یې څومره مینان ونیوه
په یو مجمر کښې یې بې شمېره سپیلني واچول



چې وس یې وي، نو سرې لوا ړ تیروي
چې وس یې نه وي دعاګانې کوي

خدایا! پرېږم بُت پرست نه شمه
ښکلي چې داسې اداګانې کوي

## برتري

په ټولنه کښې څه داسې خلک هم شته
چې د بل په دردولو ټکوريږي

د خپل ځان په درنولو درانه نه شو
خو د بل په سپکولو خوشحاليږي

## دا پښتانه

ولې به نه وژني يو بل، په معمولي خبره
دا پښتانه دي، پښتانه! څه بې غيرته نه دي

خو په وئيلو او کولو کښې هم فرق شته دے
ساحله ټيک ده، ستاخبرې بې قيمته نه دي



رسوا دې کړمه، تماشه دې کړمه
مړۀ دې راوکتل نشه دې کړمه

راغلې، خو راغلې بې د یار د دیدن
زیړ مائیګره، غرغره دې کړمه

وخته هر څه وم، نور دې هیڅ نه کړمه
دوریت احساس د سوز تپه دې کړمه

زلفې دې څنډ وهلې، یو دې ړمه
څه! د سپرلي د باد چپه دې کړمه

نن دې له قهره شونډې بوڅې کړلې
ګل ګل دې نه کړمه، لمبه دې کړمه

چرته دا زړه او چرته دا زندګي!
پرېږده ساحله یار خپه دې کړمه



چې زما د وینې رنګ نه وي محرومه
د تاریخ هغه صفحه به بې مزې وي

ستا د سترګو رڼایي چې پرې را لګي
تر هغې به د ساحل غزلې مړې وي



چې د دردونو د لذته اشنا شوی نه ووم
لکه چې زه هډو د سره پیدا شوی نه ووم

ستا د خوږو ورو زلفانو د منزل په سفر
ټیک ده چې ډېر به وارخطا وم، خطا شوی نه ووم

څنګ به مې ته ژړلې، څنګ به مې ستا غم ژړلو
چې د دوران د قېد و بنده رها شوی نه ووم

لکه چې نن ستا د کوڅې نه په کوم حال ووتم
ددې نه مخکښې چرته دومره رسوا شوی نه ووم

ژوند که هر څو د سمندر غوندې موجونه وهل
ساحله زه ورته ولاړ وم په شا شوی نه ووم



بلې لمبې چې د وطن د هر يو لوره اوځي
داسې حالاتو کښې به څه سرې د کوره اوځي

د خُوږو ژړونو مسيحا مرهم پرې ولګوه
ګنې د زړه زخم مې خدائيګو د ټکوره اوځي

قسمته! چرې هم په مونږه مهربانه نۀ شوې
زما د خُلې نه درته څکه ستغه سپوره اوځي

د زړۀ په کور کښې به د صبر ډيوه څۀ بل کړم
چې حوصله مې ستا د تلو سره سرتوره اوځي

هغه نيزه چې مقرره وي زما د پاره
چې زه ترې بچ شمه نو هلته مې د وروره اوځي

ته د ساحل د خاموشۍ په ژبه نه پوهيږې
ګنې بلا بلا معنې يې د انځوره اوځي



داسې هم نه، چې ستا د غمه، ستا د پاره نه ځي
اوښکې مې اوس هم ځي د سترګو، خو بې واره نه ځي

وایې چې خلکې نه وتے آه، عرش برین لړزوي
نو بیا زما آهونه ولې تر نګاره نه ځي

په هر قدم ورسره ستا د رسوایۍ وېره ده
که خپې مې ځي، خو زړه مې ستا د کور په لاره نه ځي

زما غزل که د ښائست رنګینې وبایلله
ستا هم د سرو لمبو بخري د رخساره نه ځي

خدای خبر څومره حق پرست به رانه نور شوکوي
عمرونه تېر شو خو، دا یو عادت د داره نه ځي

د ژړګي حال به مې پخوا درته ونیلے وو خو
دا سر خوړلے رپ ریے مې د اظهاره نه ځي



لـرې مـې د ژونـده کـړه تیـرې ډېـوې!
سـتـرګې دې را واړوه ډېـوې ډېـوې

مـا او تـا کښې دومـره فـرق نشـته خـو
زه د ورځـې سـوځم، تـه د شـپې ډېـوې

دومـره یـې پـه تـورو لـوګی تـور کـړمـه
څومره چې مې خواه ته راتلې ډېوې

بیـا مـې پـه زړه پنـډ دچـا یادونـه وو
بیـا د چـا پـه قبـر بلیـدې ډېـوې

سـتا د مـخ رڼـا وه، چـې یـې روڼ کـړمـه
هسې خـو محفـل کښې ډېرې وې ډېـوې

نـور څـه نـه دي بس خـو سوځوي پـرې مـا
بلـې چـې پـه سـر کـړلـې لمبـې ډېـوې



که سیلونه د جنت کول گناه ده
نو بې شکه محبت کول گناه ده

د اړبنګو بدمزاجو په محفل کښې
تذکره د نزاکت کول گناه ده

خُله دې ووینځه قاصده نو بیا وایه
بې اودسه تلاوت کول گناه ده

ستا د سترګو په پیالو کښې داسې څه دي؟
چې په زړه کښې یې حسرت کول گناه ده

زړه مې لوېږي چې په پنجو باندې ګرځې
بس کړه، داسې شرارت کول گناه ده

ستا وجود خو د طوبیٰ نه عبارت دے
ستا د ګل سره نسبت کول گناه ده

خبر نه یم چې دروغو کښې ثواب دے؟
که خبره حقیقت کول گناه ده؟

## مونږه دواړه

محبت کول که جرم وي واعظه!
نو بیا ټیک ده مونږه دواړه مجرمان یو

ستړي ستړي د منزل په تجسس کښې
که غوڅېږو راغوڅېږو خو روان یو
★★★

بیا یې په شونډو دل تراشه خندا وکړېده
بیا یې زما د تخیل برجونه ولړزېدل

بې د انسان د خود غرضۍ نه پکښې هېڅ نشته دے
ما د ژوندون دکتاب ټول مخونه ولړزول
★★★



تقدس د محبت پکښې پامال دے
ستا د کلي به څه وايو خو دا حال دے

د تيارو نه مه وېرېږه د زړه سره
زما اوښکې هم ډيوې دي هم مشال دے

د ژوندون د فلسفې مبلغينو!
دا ژوندون دے که ژوندو له دهرمسال دے؟

ستا په شونډو که د هجر سره سوکړه ده
زما سترګو کښې موسم د پشکال دے

دې پښو پښو اوړدو اوړدو کيسو نه
خدای دې وېخښه واعظه! زما پال دے

دا چې زه پرې جنتي جنتي ښکارم
دا د کومې مقدسې ګناه خيال دے

يو رښتيا وي، بل خبره يې ساده وي
د ساحل د غزل دغه لوې کمال دے



مه ځه، مه ځه را واپس شه د یار غمه
مونږ سپیرو سره بغیر له تا نه څه دي

بس که نشته خو ډېر شته راسره نشته
ګني وایه نور مې کم د چا نه څه دي



مه کوه، مه باڼه دې مه ځمبوه
زما د زړه درزا له خوب ورځي

اوس دې ایسار شي، اوس یې نه ګرموم
بیا که په لاره چا له خوب ورځي!



چې ماحول ټوپک ټوپک دے او فضاء بارود بارود
څه امکان دے، څه امید دے، د فلاح او د بهبود

ژوند که هر څه دے د ژوند د مبلغ په زاویه
زما سترګو ته خو برېښي د مړ ژواندي ډيوې دود

ته د ځان په خول کښې بندې زما سترګې په جهان
محترمه، مفکره، ته محدود که زه محدود؟

حق خودا وو، چې ادا شو د خولو وينو په شړ کښې
ستغې سپورې کم و زياتې د مزدور په کړاخ سود

## قطعه

نه ساقي يم، نه ملا يم، نه صوفي يم
نه مېخوار، نه د بدمستو د ټولګي يم

چې خُوږ درد يې په تمام انسانيت دے
زه د هغه خدائ پرستو د ټولګي يم



تندے مې مات دے، د زړه زخم مې اوبۀ کړي دي
هغه لا اوس هم راته وايي چې تا څه کړي دي

الله ج دې نه کړي، د سبا ناوې بدرنګه نه ده
ما ورله ځنې کړي، ما ورله رانجه کړي دي

نه راته ته يادېدې، نه مې خپل منزل لتهوو!
بېګاه مې هېڅ بې هېڅه ستورو ته کاته کړي دي

که شير عالم او مامونی نه يو خو کم ترې نه يو
پېغلو زمونږه قيصې هم په تناره کړي دي

چې بدنامي او رسوايي وه، د اخلاص په بدل
ساحله مونږه تل په هغه لاره تله کړي دي



مړ به شم، ور به نهٔ شم زهٔ ورپسې
پرېږده چې اومې چوي دا زړهٔ ورپسې

خدایه! جینۍ وه، که مرغۍ د زرو؟
ډېر پسرلي به تلهٔ راتلهٔ ورپسې

اوس هغه سترګې زما سترګې تړي
چې ګرځول به مې رانجهٔ ورپسې

لاړه وه، شپه وه، یو ګُټ پیر خونه وو
ما به تر څو پورې کاته ورپسې

لکه چپه چې مې د غېږ نه تلله
د زړه ساحل مې نړېده ورپسې

## قطعه

څوک پسې الوځي، زوړند دے په آسمان کښې رزق
چاله یې ښکته دے لیکلے په ډېران کښې رزق
ډمه د تور ښار په تیارو کښې تکه سپینه سیکه
مُلا ته ښکاري د هوس په سپین ایمان کښې رزق



چې په لمبو يې د ناترسې جفا اونيومه
زما نصيب دا زه په کومې ګناه اونيومه

زما مثال د هغې ونې دے چې بېخ يې نه وي
شېبې ګړۍ له به ايسار شم کۀ چا اونيومه

د مخ په لار دې راته تورو زلفو دام خور وو
تيارو د سپينو رڼاګانو په شا اونيومه

دا ځل مې وبخښه تېروتے يم د مينې په نوم
بې شکه مړ مې کړه که بيا دې په غلا اونيومه

ساحله دا دچا د سپينې خُلې ښېرې خو نه وې
چې په روښانه سحر تورې بلا اونيومه

## قطعه

ما خو د ځان نه چرته سپک ګڼلے نۀ دے
زه خو رقيب له هم درانۀ کنځل لټوم
ټيک ده منمه خو زما لاره به هم نه نيسئ
تاسو جانان جانان کوئ زه به منزل لټوم



ښه بې قرار يم د قرار خبرې نهٔ زده کووم
د زړه پرهر ته د اظهار خبرې نه زده کووم

بس دے په خپلو سترګو نورې زلفې نهٔ خوروم
بس دے د خال او د رُخسار خبرې نه زده کووم

تمامه ورځ د خرافاتو غېږ کښې لوبې کووم
خو د هنر او د روزګار خبرې نه زده کووم

وخته سپېرې راکوه! خو په واره واره کښې
زه وخت د سره په يو وار خبرې نه زده کووم

په يو څو ورځو مې ساحله تسلي نه کېږي
په دغه وجه د بهار خبرې نه زده کووم



ناپوهه زړه رانه په دې، کله په دې تختوي
څومره چالاکه ده، د ویښې مور نه زوی[۵] تختوي

زه چې دې سترګو ته په ځېر شم رقیب مهٔ یادوه
بدمسته خلک خو سرور د میکدې تختوي

زه حقه وایم او د حقو ملګرتیا کوومه
خو د محفل نه مې اکثر خلک په دې تختوي

دا د مغرب هوا بې رحمه ده که مونږ سپک شو
د پیغلو شال سره شملې اوږدې تختوي

منډې وهم خو بې ترتیبه څه کولی نه شم
غربت زما د تصور نه ارادې تختوي

دا خو ساحل دی چې په ځان یې څه پروا نشته دی
چپې چپې د غم سیلاب، پخې ردې تختوي

## زه او ځیګر[۶]

که رسېدلي د آسمان تر شش جهته نه یو
خو دومره ده، چې خپل ضمیر ته ملامته نه یو

پرهر پرهر یو اوړی تګي یو، خو مینې ویشتو
مونږ حُسینیان د یزیدخېلو د فطرته نه یو

[۶]- ځیګر مطلب زما ډېر خوږ دوست، زما همخیال شاعر، بلکې ډېر ښه شاعر فاروق ځیګر صیب.



چې ستا په زړه کښې د لږ ځاې دپاره هسه كووم
بې وسه يمه خو كوشش تر خپله وسه كووم

ډېره خوځكه د يارانو د مجلسه كووم
ستا د يادونو سره ځانله پسه پسه كووم

زما په شاني پكښې ډېرو خپل مرام بائيللے
زه د تودې غېږې نه يره ددې تسه كووم

غليم به څنګه رانه كېږدي پرې ناپاكه قدم
په كومه خاوره چې د مونځ دپاره مسه[۷] كووم

د اتحاد او ورورولۍ نه يې قسم كړے دے
دغه ګيله به زه تر مرګه د اولسه كووم

كله مې وخندوي كله مې بڼه وژړوي
ساحله وېره د فطرت له دې قفسه كووم

٭

۷ - مسه - مسحه.



د سرو ګلونو د ورمو ښاریه
لمبه لمبه شوه د نغمو ښاریه

ډیر ارمانونه مې دفن کړل پکښې
زما زړګے لکه د مړو ښاریه

ته کۀ د غمه سترګې نۀ توروې
ما هم پرېښودې په سلګو ښاریه

چا په ترخو زهرو کښې ولړله
هغه د زړه د خوږېدو ښاریه

بغیر له تا نامکمله ښکاري
زما د خیال د رنګینو ښاریه

چرته کښې هغه د ساحل پېښور
چرته د وېرې او تیارو ښاریه



اے څومره د مزې څومره د خوند دے ستا تصویر
زما د زړه په هر دېوال زوړند دے ستا تصویر

د زړه په ګلدره کښې مې ډېر دے ستا احساس
د سترګو دائره کښې مې پابند دے ستا تصویر

هر څو که د ښایست په وسعتونو باندې موړ دے
زما د وړو سترګو حاجت مند دے ستا تصویر

کېدے شي چې يې ستا د ښکلا زور زغملے نه شو
ته ګورې نه، چې ځاې په ځاې پیوند دے ستا تصویر

خپه نه شې که نن دې پکښې خال په زنه نشته
وینځلے مې په اوښکو بند په بند دے ستا تصویر

شوګیر دے، تنهایي ده، ستا یادونه دي ساحله
ابنودے مې پټ لاندې د مړوند دے ستا تصویر



چې د اغيارو سره جنګ کښې يې په مټ وتړم
راشه د زلفو نه تارونه دې دوه درې راکه

ته چې واپس رانه خطونه تصويرونه غواړې
ښه څه بس ټيک ده ما له ټولې شوګيرې راکه

★★★

د غټو غټو خلکو خپو لاندې شوې
زمونږ ورې ورې ناداني جذبې

ساحل خداې دې تمام عمر لره
د سمندر غوندې رواني جذبې

★★★



څه موده پس دې د خندا زلزلې
زمونږ په چم راوستې بیا زلزلې

ما دې لا سترګو نه توبې ویستلې
وریښمینې زلفې دې سیوا زلزلې

تا ته چې ګورم نو رپیږم غوندې
رابانــدې راشـي د حیا زلزلې

لا مې زاړه عکسونه سترګو کښې دي
ربه! نازلې نه کړې بیا[8] زلزلې

جانانه دواړه بالکل یو رنګې دي
زما خیالونه ستا ادا زلزلې

د خپله ځایه به رپ ونه وهې
که په ساحل راشي بلا زلزلې

[8] په ټول پاکستان کې د ۲۰۰٤ زلزلوته اشاره ده.



خیر دے ماشوم دے ول په ول یې تړون نه دے پکار
په لېوني زړه مې د جبر قانون نه دے پکار

د زندگۍ دویمه نامه که بې وسي وي ربه!
واپس یې واخله زما داسې ژوندون نه دے پکار

څوچې ددې خاورې په مینه خاورې شوے نه وي
خود سره سر مې د جانان په زنګون نه دے پکار

ما له دعوت د خپلې مینې په بیا بیا راکوي
د لېونۍ په مخ د زلفو سمون نه دے پکار

په نه خبره چې د یو بل تر ګرېوانه رسي
که دا پښتون وي، زما داسې پښتون نه دے پکار

چې د اولس اودۀ ضمیر مې بیدار کړے نه وي
په ما حرام دے! ما له خوب د سکون نه دے پکار

زه خوساحل یمه د هرې چپې زور ماتوم
ربه زما په دې جذبو کښې بدلون نه دے پکار



غم چې مې راس په طبیعت راغلو
په ما کښې دا لا کوم عادت راغلو

دا به زما د اوږو سترګو فیض وو
چې ستا ښائست کښې برکت راغلو

چې ته زما وې سازشونه کېدۀ
اوس چې دبل شوې شریعت راغلو؟

نن یې زما په ځای رقیب کچه کړو
بې ننګه یار کښې مې غیرت راغلو

زما ارمان او پښتو دواړه سر شو
جانان مې څنګ له په منت راغلو

★★★

چې نه په زړه کښې ورته مینه لرم نه دشمني
رقیب زما سره کوي آخر په څه دشمني

یو په یوه باندې روان دی بل په بله روان
ماته راپیښه ده، د ذهن او د زړه دشمني



بېګاه مې بې اختیاره په زړګي را وربېده
سپوږمۍ د څوارلسمې په آسمان کښې ځلېده

د ځانه ناخبره د همزولو په ټولګي کښې
د حسن او د نور يوه شغله وه بلېده

اکثر به يې ملالې سترګې توري په رنجو کړې
نادانه وه، وړه وه، خو په زړه مې پوهېده

يو ځل ورته راغلې وه خو بیا ترې نه واپس شوه
زما د زړه سنسانه ادېره کښې وېرېده

نرۍ نرۍ هوا وه او مېده مېده باران وو
ګل پاڼه مې په غېږ کښې لکه پاڼه رپېده

ولاړ ومه ساحله خو ما هېڅ نه شو کولې
کشتۍ مې د آرمان په سمندر کښې ډوبېده

## ځان ځاني

زه قتلېدم خو د خلاصي دپاره هېڅ څوک نه وو
ګني ولاړ د تماشې دپاره ډېر خلک وو

په دې وطن کښې د اصلاح خلک په شمېر پاتې وو
په دې وطن کښې د غويمې دپاره ډېر خلک وو

## خود غرض

هغه په هر څه کښې دولت لټوي
هغه د زړونو احترام نه مني

کلي کښې اوس هم داسې خلک شته چې
زما ضمير ورته سلام نه مني



تـه يـې د فطـرت معصـومانه انـداز
زه د محبـت دانـه وانـه انـداز

خداې زده چې د چا نه يې زده کړے وو
هغـه د کتـو قاتلانـه انـداز

چرتـه پـه زرګونـو کښـې د يـو ښـکلي
وي پـه تـول پـوره، پـه پيمانـه انـداز

ښکاري چې بې وختـه بـه مې ووژنـي!
سـتا د تغافـل جارهانـه انـداز

دا پـه دار ختـل او پـه خنـدا ختـل
واه! سـاحله سـتا عاشـقانه انـداز

★★★

اوربـدل يـې د رنـدانو دلجـويي ده
سـتا خبـرې د خيـام شـعر ګـويي ده

حادثـات مـې د دلـدل غونـدې زاکـاږي
خداې خبر دے چې په ما کښې څه لويي ده



نه مې سم پېژني او نه يې اندازه کړې ده
بس توره نخښه يې زما په دروازه کړې ده

ستا شمري نظر د کفر ګذارونه کول
ما په شهيد آرمان د اوښکو جنازه کړې ده

دا خو کېدے نۀ شي چې اوس به پرې خپيمانه شمه
ما هره خوښه د ضمير په اجازه کړې ده

بيا مې يو ښکلے په نظر باندې خوږ اولګېدو
بيا مې د زړه وران شوي کور ته قوازه کړې ده

خير که ساحل يم د ذرې ذرې نه جوړ يمه خو
زما خيالونو تر آسمانه انګازه کړې ده



ستا انتظار کښې مې مدام سترګې نيولي په لار
کله نا کله څو راځه زمونږ د کلي په لار

تمامه ورځ پرې د ګلونو باران وورېدو
هغه يو ورځ چې تا د نازه وو خندلي په لار

ستا د نازک نازک قدم، قدم بوسې دپاره
وګوره څومره کشمالي مې دي کرلي په لار

بېګاه چې تو له شپه د ځان سره مُسکې غونډې ووم
تا په مُسکي مُسکي نظر وو راکتلي په لار

ستا د چپو چپو زلفانو دريابي څپېرې
ساحل بلا موده په خپل وجود خوړلي په لار



نه ته خطا نه زه خطا مین یم
ته په ګلونو، زه په تا مین یم

دا خو هم ستا د مخ رڼا لټوم
که په سپوږمۍ که په برېښنا مین یم

څوک یې زما نه بېلولی نه شي
د خپله ځانه پرې سیوا مین یم

چې څوک یې وچېږي ګرېوان وشلوي
د لېونو په دې ادا مین یم

ستا د ساحل اوښکې به څوک ودروي
چې تا وئیلې په ژړا مین یم



څه خپلې بې وسۍ او څه جانان په مخ ځپېږه
راکړې زندګۍ ده، په هر شان په مخ ځپېږه

ما درکړله ستا حسن له په لپو لپو وینه
تا راکړله زما د هر ارمان په مخ ځپېږه

انسان یم! خو ددې انسانیت نه مې توبه شي
چې خپل انسانیت شي د انسان په مخ ځپېږه

ایله بس د غریب د حق الفاظ مې وو په خُله کښې
یو تق شو، چې مې وخوړه د خان، په مخ ځپېږه

هر وخت نوې چپې وي نوي نوي طوفانونه
دا دور دے ساحله د دوران په مخ ځپېږه



سوځي چنارونه د ګودر نه لوګے خېژي
بیا مې د ګلونو پېښور نه لوګے خېژي

څنګه د قدرت د ښکلاګانو ذکر وکړم
دلته چې د هر ښکلي منظر نه لوګے خېژي

هغه چې پرې تا د نظر اور وو وروله
اوس مې هم د زړه هغه کنډر نه لوګے خېژي

څوک د خپل اولس د بربادۍ ذمه وار وګڼم
کله د جومات، کله مندر نه لوګے خېژي

اور چې یې زما د زړګي ولیدو لمبه شو
وګوره ساحله سمندر نه لوګے خېژي



پوهې شومه، چې ستا د شماره ووتم
ځکه دې د ښکلي ښاره ووتم

دا منم چې ته به هم هغه یې خو
زه د محبت د تاره ووتم

هسې څو جومات ته لارې د پېرې وې
زه ترېنه هم ستا په لاره ووتم

تا چې د ښایست جنت ته بوتلمه
خود خو د دنیا د کاره ووتم

ستا نه چې مې زار کړو ستا کوڅه کښې سر
راغلمه ملنګ مالداره ووتم

زلفې دې کوږې او زه مجرم شومه
خدایګو چې د سخت ګذاره ووتم

زه د اباسین چپو له نه ځمه
کور نه د ساحل د پاره ووتم



ستړګې لرمه د دامونو قېد کښې نه راځمه
زړګيه ستا د حسرتونو قېد کښې نه راځمه

زه يو بخرې يم، خو يمه د رڼا بخرې
ستا د کاکل د تورتمونو قېد کښې نه راځمه

تمامه شپه به په تا خپلې پلوشې خوروم
سپوږمۍ ويل! د تندرونو قېد کښې نه راځمه

زما اودۀ شعور د خوبه ستړګې پرانستلې
اوس دې په چُف چُف، د دمونو قېد کښې نه راځمه

زه خو چراغ يم چې بلېږم نو رڼا کوومه
هسې عبث د محفلونو قېد کښې نه راځمه

لکه خوشبو خپلې هستۍ پورې محدود نه يمه
لکه ګلاب د خو رنګونو قېد کښې نه راځمه

لکه ساحل په خپل مقام باندې ساکن ولاړ يم
څپېړې خورم، خو د موجونو قېد کښې نه راځمه



یو زه یم او دا بل مې د ې زړګے لکه زما
که نه! په غم اخته د ې هر سړے لکه زما

ورک ورک به وې د ځانه لېونے لکه زما
که ستا په شانې زه وے او ته وے لکه زما

پرون د زمانې د تُند رویی نه ناخبره
په خپله خوښه تللو یو مېړے لکه زما

تکړه شه د ستم درانه پنډونه ور په سر کړه
ارمان مې د زړګي د ې لا زلمے لکه زما

ما وې چې د سپوږمۍ رڼا د څه غوندې پسته ده
پاستۀ پاستۀ یې وویل چې اے! لکه زما

په خوي دې آفرین وي ستا د تورو تورو زلفو
لمبو ته دې د مخ شولې لوګے لکه زما

ساحله د ګل رنګو په خندا د هغو حق دی
چې مات یې په ځیګر کښې وي ازغے لکه زما



ډېرې مې نچوړ کړلې، د ګل او د رخسار قيصې
ځکه مې د شونډو نه راځاځي د خمار قيصې

هم د خير او شر خبرې هم د نور او نار قيصې
نن په سترګو سترګو کښې وکړه په يو وار قيصې

چرته دا نازک لبان او چرته د آهونو اور
چرته د ګلاب ژبه او چرته د انګار قيصې

ځې راځي کعبې له تفسيرونه د رحمت لولي
نۀ اوري او نۀ کوي په زړونو د ناتار قيصې

ستا غزل، غزل دے خو ساحله يو تپوس کووم
څېټه مړولے شي؟ دا د آه و زار قيصې!

## قطعه

چې د خلکو په سرونو باندې خپې ږدي
آخر څنګه به لاسونه په کعبې ږدي
چې ساحل يې د تيارو په قيد کښې مړ کړه
اوس يې څه له په مزار باندې ډيوې ږدي



زه ښه پوهېږم چې یې څه وې د ښو په ژبه
مونږ معرکې کوو اکثر د اشارو په ژبه

دې بې رخۍ ته یې عادت، که شرارت ووایم
ځان چې ناجانه کړي زما د اسوېلو په ژبه

زما به ژبه انښته، او هغه شنه د خندا
اظهار د زړه مې ډېر بې زړه وو نه راتلو په ژبه

زه د دوزخ نه د اغیار په سازش نه وېرېږم
زه به نغمې د جنت وایم د پښتو په ژبه

چې ستا د سترګو لېونو نه لېونتوب اخلمه
لېوني رسي لېونی د لیونو په ژبه

یو حوصله ده، یو همت دے، لکه ستا خو نه دے
ساحل پوهېږي، افتخاره د چپو په ژبه



څومره ګرانه او بې خونده ژوندکي ده
په لمبو کښې مې زوړنده ژوندکي ده

زه يې څنګه ستا د لاس د پاره خوښ کړم
د بنګړو څخه تر مړونده ژوندکي ده

د جهان د ګړنګونو شاهسوار ووم
اوس مې وتې دهر بنده ژوندکي ده

سرتر پايه پکښې ډوب لکه مجرم يم
د غمونو يوه کنده ژوندکي ده

د خپل ذات د دايرې نه وتے نۀ شم
لکه ستورے مې پابنده ژوندکي ده

د ساحل او سمندر غوندې زمونږ هم
د يو بل سره پيوونده ژوندکي ده



اورو بـه او ګـورو بـه دلـداره څـهٔ بـه نـهٔ وايـو
چپه خلُه به ځو په خپله لاره څه به نه وايو

خيـر دے کـهٔ هغـه پـه غتـو غتـو مهربانـه شـو
خير دے که يې اوويستو د شماره څه به نه وايو

هر څوک در کښې خپه د بل په سر اړدي او مخکښې ځي
ځـه د خودغرضـو خلکـو ښـاره، څـه بـه نـه وايـو

پـاڅئ! د کـاروان ملګـرو خپلـې متـې ونغـاړئ
څو پورې به ناست يو په قلاره، څه به نه وايو

مونږ د ميکدې په منځ کښې جام سره بدنام شـهٔ يـو
اے! پـرده نشـينه، پرهېزګـاره څـه بـه نـه وايـو

يو انسان او يو جهان، نو خـدايا بيـا دا دومـره فـرق
خوار دخوار و خوار شي او مالدره؟ څه بـه نـه وايـو

څه وکړو ساحله چې مجبوره خپـل عـادت نـه يـو
نـه وايـو خـو ووايـو، بې واره څـه بـه نـه وايـو



شـر د ټــول عــالم دې را پــه غـاړه کــړو
عشـقه! جــوړې غــم دې را پـه غـاړه کـړو

ډيـر کـه مـې خوبونـه د جنـت ليـدل
ژونــد د جهــنم دې را پــه غــاړه کــړو

اى زمــا ګريوانــه تــار پــه تــار شــه يــې
ګــوره کــه صــنم دې را پــه غــاړه کــړو



ستا په لور کږې وې، کږې پاتې شوې
سترګې مې ړندې وې، ړندې پاتې شوې

اے د جانان غمه، ښه غمجن دې کړم
زړه ته مې نزدے وې، نزدے پاتې شوې

بس فراقه نورې اوښکې مه غواړه
ټولې خو دوه درې وې، دوه درې پاتې شوې

ماله يې د عمر مزے لنډ کړلو
زلفې دې اوږدې وې، اوږدې پاتې شوې

نور مې د ژوندون په کور کښې څه وو خو
ستا يو څو قيصې وې، قيصې پاتې شوې

څه! ساحله چا هم را يوځاې نه کړې
ټول زرې زرې وې، زرې پاتې شوې



چا وې چې نفرت تـه زنـدګي وايـو
مونږ خـو محبـت تـه زنـدګي وايـو

څـومره سـادګان څـومره ناپوهـه يـو
بـس! يـو امانـت تـه زنـدګي وايـو

سـتا د سـترګو رپ د مـرګ ګـذار ګڼـو
سـتا د شـونډو سـت تـه زنـدګي وايـو

پـت، ښـېګڼه تـوره، وفـا ننـګ لـرو
نـه، چـې سياسـت تـه زنـدګي وايـو

مينـه د کچکـول د وس نـه ووتـه
ځکـه مـو دولـت تـه زنـدګي وايـو

کلـه سـمندر شـي کلـه بيـا سـاحل
دغـه حقيقـت تـه زنـدګي وايـو

★★★



ځان راله ضمیر ته سترګې ټیټې کړې
اوس خو آینې ته هم کتے نه شم

اے زما غزله اوښکې وچې کړه
نور دې د چا زلفو کښې نغښتے نه شم



د پښتو نه لا تر اوسه تیزندې دے
تصور مې ستا په زلفو کښې بندې دی

عشقه! اوس په سپینولو نه سپینیږي
داسې داغ دې راله ایښی په تندې دی



نیمزالـي چنارونـه دي پـه غـرهٔ ولاړ ولاړ دي
کـه سـتا د ښـو غشـي مـې پـه زړهٔ ولاړ ولاړ دي

دا ځکه خو د درست جهان د حلقه نه تیرېږي
خـود سـره دي، شـډل دي، پښـتانه ولاړ ولاړ دي



دا بوړنـوونکې نیمـه شـپه او دا بې ځایـه اجـل؟
خیر دے خپه نه شې، د سوال ډیوه هم دغسې وي

انجام یې څـه خـو بیلیـدل، د هـر راوي پـه ژبـه
زمـا او سـتا د محبـت قیصـه، هـم دغسـې وي

سـاحله پرېږده هسې غـر سره تنـدے مـهٔ وهـه
عمر به تېر شي خـو دا خلـک بـه هـم دغسـې وي



تا مینه کړې؟ مینه پېژنې؟ مین یې که نه؟
سترګو یې وکړل په بڼو کښې دغه درې سوالونه

څوک دے؟ چې ته یې انتظار کړې، ولې؟ خوب نۀ درځي؟
ستورو کول د هجر شپو کښې دغه درې سوالونه

ما نه جواب کښې مینه، وینه او رنګونه غواړي
ستا په نازکو شونډو سرو کښې دغه درې سوالونه

# نظمونه

- ✓ نوې کربلا
- ✓ شکایت
- ✓ شکر دے خدایا چې خوبونه....
- ✓ سوالګرې جینۍ ته
- ✓ زاویه
- ✓ رڼا
- ✓ جد و جهد

# نوې کربلا

اوچ مخونه، لوړې تندې دي صحرا ده
دا زمونږ د دور نوې کربلا ده

زمکه سره ده نمر په جوش کښې نن د تهر دے
هر سړے زغلي په منډو باندې سر دے
ټول ماحول لمبه لمبه اوتر اوتر دے
چرته اوږے تږے پروت علي اصغر دے

چرته تږې سکینه ده وار خطا ده
دا زمونږ د دور نوې کربلا ده

دا بچے د ایرو پنډ چې درته ښکاري
دا نیم پټ او نیم بربنډ چې درته ښکاري
د ګرمۍ نه په غویمنډ چې درته ښکاري
لړ د خلکو نه په څنډ چې درته ښکاري

مستقبل دے، تته سترګه د سبا ده
دا زمونږ د دور نوې کربلا ده

يزيدان او شمران دي راچليږي
د خپګان نه اوچتيږي راخلاصيږي
نور په خپلو کښې په يو بل ښه پوهيږي
ويني ګوري، نه شرميږي نه مړه کيږي

هر طرف ته ماتمونه دي غوغا ده
دا زمونږ د دور نوې کربلا ده

د جمهور داصليت په مخ څپيړه
د نړۍ د امنيت په مخ څپيړه
د وطن د شهريت په مخ څپيړه
د تمام انسانيت په مخ څپيړه

د تهرپار هلاکتونو واويلا ده
دا زمونږ د دور نوې کربلا ده



څه تعجب دے که دې خپې ښکلووم
بې سره یم، خو بې ادبه نه یم

چې ته یې مور کړې خو څه راز دے پکښې
ګڼې نوزه هم څه بې ربه نه یم



زه پښتو یم په هر حال کښې سرخرو یم
ازمېښتونه د وفا په ؤلي مه ږده

د ګلونو ځانګه تاته مبارک شه
یو ازغی ترینه زما په څلي کېږده



وېرېږه مه، که هر څه وي، نو وي به وروستو نه شي
د حق په لاره ځه او یادوه د الله ج نوم

ساحله نه پوهېږم چې دا څه منافقت دے
په زړه کښې دې بتان دي او په خُله د الله ج نوم؟

# شکایت

د لوړي بوَسره په شر اودهٔ وو
خپل خپل ګرېوان په ژړا تر اودهٔ وو

زما په غيږ کښې يې ګرمي کېدله
که په سايه کښې د سقر اودهٔ وو

چا هم د حال پوښتنه اونه کړله
هر څوک پوره وو، برابر اودهٔ وو

ستا د نيازبينو په مالت کښې ربه ج!
زما بچي بېګاه نهر اودهٔ وو

★★★

اوس د خپل ځان ګنبد کښې ژوند تيروم
اوس په آباده کښې د ښاړي يمه
ياره نقطې به راکښې نه لتوې
هر څه چې يمه ستا د غاړي يمه

# شکر دے خُدایه چې خوبونه د چا واک کښې نه دی

شکر دے خدایه، چې خوبونه دچا واک کښې نهٔ دي
گني نو ما خوبه په خوب کښې هم دیاړي کوله
یا به مې مېخې څرولې د چا خان پټې کښې
یا به مې لنګې، راښکې، یا به مې چاپې کوله

شکر دے خدایه چې خوبونه د چا واک کښې نه دي
گني نو زه خوبه مدام کډه په سر ګرځېدم
یا به ورو ورو بچوله سیر وړو ګټلو پسې
تمامه ورځ ښه بسوے لوږے او نهر ګرځېدم

که دغه هر څه نه وے دا خو یقیني وه ربه
چې د قسمت په شنډه لمسه هېڅ بې هېڅ له ما!
په هر قدم به مروره زندګي وه ربه
شکر دے خدایه چې خوبونه د چا واک کښې نه دي

دا خــو زه، بیــا هــم کلــه کلــه ځــان بادشــاه وویــنم
د ژونــد بــې شــمېره محرومــو نــه فــرار ولټــوم
پــه خنــدا ښــاد شــمه پــه څنــګ کښــې دلربــا وویــنم
شــکر دے خــدایا چــې خوبونــه د چــا واک کښــې نــه دي

ګنــې زمــا د برخــې خــوب بــه هــم لــوټلے وو چــا
لکــه زمــا بــه پــه لمبــو کښــې ودرولے وو چــا
یــا بــه پــه مــخ مــخ بــر ناحقــه ټکــولے وو چــا
شکر دے خدایه چې خوبونه د چا واک کښې نه دي

## سوالګرې جينۍ ته!

ته د چا د سترګو تور يې، ته د چا د مينې نښه
خو په حق دې رسېدلې، د ازله بده برخه

ته ښکلا د کاينات يې، د تخليق يو خزانه يې
ډېر نران دې زېږولي، که په خپله زنانه يې

د آدم د زړه ټکره يې، د حواء د سترګو نور يې
دې بدمسته دنياګۍ کښې، مينه مينه يې سرور يې

خو نن ولې داسې ښکارې، بې اسرې او سربېره
په بازا چغې اوباسې څوک دې نه اوري خبره

د چا خواه ته ورنږدې شې په وړه ژبه ګويا شې
خو چې هيڅ درله در نه کړي نو د سوخته په ژړا شې

کله کله په بازار کښې څوک شريف درسره مل شي
خودغرضه منافق شي ستا د ښکلي ځوانۍ غل شي

د خدای کړو باندې حیران شم چې ته ولې در په در یې
در په در خو به لا شه وي، ورسره خاورې په سر یې

د خدای دومره لوی جهان کښې ستا نه خپله دنیا ورکه
د خپل در په تلاش ګرځې د هر دره ورکه، سپکه

نه د چا د کور مېرمن شوې، نه د چا د غاړې هار شوې
خپل پردي درنه ځان نغاړي د هر چا په اوږو بار شوې

د نېستۍ په دوړو خاورو ستا د ګل غوندې مخ خړ دی
د انصاف په کمترۍ کښې تا ته هر یو سړے پړ دی

خپه نه شې زما ګلې څوک غمخوار دې د غم نشته
دې ظالم ماحول کښې ستا د پاره رحم نشته

# زاویه

ژوند په خوبونو باندې نه تیرېږي
ژوند د یو تلخ حقیقت نامه ده
خوب یو سراب دے، یو خوږه دوکه ده

ژوند د ژوندو په سر کښې اور خُتکوي
ژوند د ژوندو ځنې څرمن اوباسي
ژوند چې هم سوال دے هم جواب هم دلیل
ژوند په لمبو خپې ابله تلو ته وایي

ژوند د لیلی د تورو څنو ګلاب
ژوند د مجنون د قمیص څیرې ګریوان
ژوند د فرهاد د مات تندي نښه ده

خوب یو سراب دے یو خوږه دوکه ده

ژوند د مقتل په دروازه کښې اوسی
ژوند د خلیل د سرو لمبو انډیوال
ژوند د منصور د انا الحق ملګرے
ژوند د خیام ډکه کاسه کښې اوسی

کله سور اور دے کله شونډې د یار
کله ګیډۍ ګیډۍ د زلفو په شان
کله دوزخ کله جنت او خمار

کله د مرګ په خُله کښې لاس ورکوي
کله دځان د تیښتې ړَولتهوي
ژوند د عمل دجام ترخه نشه ده

خوب یو سراب دے یو خوږه دوکه ده
ژوند په خوبونو باندې نه تیریږي
ژوند د یو تلخ حقیقت نامه ده

# رنا

لکه چې ژوند په ځاې ولاړ وي حرکت نه کوي
یا د تیارو په تندي ستوري وي خورپ نه وهي
یا د سپرلي په زړه راشکونکو موسمونو کښې هم
یو سور ګلاب ښه تازه تر وي خو خوشبو نه کوي

داسې زما د وجود جېل کښې یو سړے پروت دے
ددغه جېل په دېوالونو د تیارو پېره ده
یو خاموشي غونډې خوره ده یو سکته غونډې ده
ماته خو هو بهو هم دا منظر کشي پېش کوي
لکه چې ژوند په ځاې ولاړ وي حرکت نه کوي

کله ناکله یو مرغی نیمه کړي لار غلطه
او ددې جېل په وحشت ناکه المناکه زمکه
خپلو وزرو نه یو څو بڼې را وشغوي
بیا سمدستي د سترګو رپ کښې په یو پر الوزي

ددغه جېل په دې تیارو کښې چې دا څوک یادوم
دغه سړے نه لیونے دے او نه مړ دے خو بس
په دغه جېل کښې په دې طمع ورځې شپې تیروي
چې یوه ورځ به ته په شان د څوارلسمې سپوږمۍ

د خپـل رخسـار نـه د وريځـو نقـاب وغورځـوې
او ددې جېـل پـه دې تاريکـه الماکـه زمکـه
بـه د خپـل مـخ ځـو نـوراني شـغلې راوغورځـوې
دغـه رڼـا بـه ددې جېـل تيـارۀ لـه مـلا ماتـه کـړي
او ددغـه جېـل تېـرو تيـارو سُـمبو سيخونو کښې بـه
شـې را دننـه او زمـا سـترګې بـه وبرېښـوي
بيا بـه پـه ما يـو طلسمي غونـدې رڼا خوره کـړي

هغـه رڼـا چې مـړ احسـاس تـه بـه مـې ژونـد وبخښي
هغـه رڼـا چې د تيـارو ديـوان بـه اوتښـتوي

## جد و جهد

موري ته مه خپه کېږه
که د سختونه تېرېږم
ستا دعا چې راسره وي
زه به څنګه خرابېږم

موري ته مه خپه کېږه

که حالات لمبه لمبه دي
نن سبا په ټول وطن کښې
څه رنګونه خولا شته دے
د ګلونو انجمن کښې

لا ژوندے یمه ولاړ یم
هر ستم سره جنګېږم
ستا دعا چې راسره وي
زه به څنګه خرابېږم

موري ته مه خپه کېږه

که په دار شم که سنګسار شم

د وختونو فیصلې دي
پرواه نشته که ازار شم
دا د مینې مرحلې دي

ستا منګول چې مې په سر وي
نو د هیڅ نه، نه ویرېږم
ستا دعا چې راسره وي
زه به ځنګه خرابېږم

مورې ته مه خپه کېږه

که دَ هر دهر قاتلان مې
د سندرو ژبه پرې کړي
که د مینې منکران مې
په خنجرو ژبه پرې کړي

غلی غلی به په قلاره
به په زړه کښې ګنېږم
ستا دعا چې راسره وي
زه به ځنګه خرابېږم
مورې ته مه خپه کېږه

کـــه رښـــتیا ویـئـــل ګنـــاه وي
حـــق د پیـــر مـــذهب کنځــــل وي
د پیســـــــې حیوانیـــــــتـــه
ســـرېتوب راپرځـــــول وي

داســـې وران ښــه یــم ســـاحله
نــۀ ســمېږم، نــۀ ســمېږم
ســـتا دعـــا چـــې راســـره وي
زه بـــــه څنګـــــه خرابېـــــږم

مـــورې تــــه مــــه خپــــه کېــږه
مـــورې تــــه مــــه خپــــه کېــږه





زه دا پیش ګوئي کولے شم، چې په راتلونکو وختونو کښې به ساحل د پښتو یو ډېر ځانګړے او مثالي شاعر وي، داسې شاعر چې هر وخت او هر ځاې نه پیدا کېږي.

سعدالله جان برق

۱/۱/۲۰۱۳ منګل